# ۲۵ - ارزښتناکه مقالې

## د هرات ژبتوکميز(ethno-linguistic) رغبت او د پرسنايزېشن لاملونه يې

د هرات سيمه تر اوسنۍ اداري اډانې((ولايت ))، او ان مخنۍ(( نايب الحکومه ګۍ )) هغې هم پراخه وه. لرغونی اوستايې نوم يې ((اريا )) 1 او هخامنشي پارسي هغه يې(( هريوا 2((Haraiva- ښوول شوی دی. د ژبپوهنې په رڼاکې دغه سيمه تل د ختيزو او لويديزو آرياني ترېورانو تر منځ لاس پر لاس شوې ده. په زاړه ژبني-تېرني يا آرياني پېر (... 500- 300مخزېږدي) کې اخواته هخامنشيان واکمن ول او دېخوا زياتره ساکان او. په منځني هغه( 200مخز-700 ز ) کې لويديځ خواته دويم پارسي پښت ساسانيان او دېخواته دويم ساکه پښت، هغه هم، تر هغه وروسته چې په سوېل ختيځ کې د ساکستان تېولواکمني د اشوکا په مشرۍ د هندي موريايانو له خواراوپرځېده، په شمال ختيځ کې يې دکوشانيانو او ورپسې يپتلانو(يفتليانو ) په نامه بل زوزات يو په بل پسې تېولواکمنۍ ته ورسېدل. (له 800 ز راهيسې) په نوي ژبني پېر کې دېخواته بيا هم زياتره د درېيم ساکه پښت پښتانه او نور ساکه تېرونه(کوشاني- يپتلي پاتشوني: ييدغاييان، مونجيان، رو ښانيان، شوغنيان، واخيان، اشکاشميان، زيباکيان، سنګلېچيان،اوروشوريان، يزغولاميان، اوسېتيان...) له ښلابېلو سيمه واکيو (ملوک الطوا فيو ) سره واکمن پاتې شوي دي3. څنګه چې د لوط دښتې(کوير لوط ) له آرياني او خراساني پېره د نوي افغاني پېر تر لومړيو(نولسمې پېړۍ ) پورې د ختيځ او لويديځ ترمنځ لرغوني پوله رغولې ده، نو لرغوني هرات هم د سيستان(ساکستان)ترڅنګ دهمدغې ختيزې برخې ((خراسان)) د يوې سمسورې سيمې په توګه يوه سياسي= فرهنګي منځۍ او پلازمېنه پاتې شوی دی. نو که په زاړه او منځني ژبني يا لېنګوېستي پېرکې لاس پرلاس شوی، په نوي مهال پېر کې يې هم زياتره ورته برخليک درلودلی دی4.

په درېيمه اسلامي پېړۍ کې چې د عربي نيواکګرو پر وړاندې دېخوا د ازادېپالو غورځنګونو له برکته يوازې پارسي ژبې د دويمې ديني ژبې په توګه سر راهسک کړای شو او پېړۍ دوې وروسته د آمو له پورې غاړې ساماني واکمني راوغځېده، نو د نورې سرحدي تراړې په لړکې دهرات پرسنايزېشن هم پيل شو. په دې توګه له منځني پېره رانيولې د اوسني پېر تر نهو= لسو پېړيو، په بله وينا، هوتکي او بيا په تېره ابدالي تېولواکمنۍ(اېمپراتورۍ) پورې،لکه څنګه چې پښتني واکمنۍ يا کورواکۍ سيمه ييزه = تېرنۍ جوله درلوده، ژبه يې هم سيمه ييزه پاتې شوې، نو د سراسري پارسي ژبې تر ګونډو لاندې راغلې ده. څرګنده وه چې دغه پارسيوالي (پرسنايزېشنال) بهير له هماغه سرحدي تراړې رانښتی، هرات او شاوخوا سيمې يې لومړۍ د سامانيانو او ورپسې تيموريانو او نورو تورک=مغولي بلوسګرو

او نیواکګرو له واکپېر سره تر ګردو له مخه رانغښتې او ورپسې ترغزني او کابله رارسېدلی دی.
داپېښنه د غزني، کابل، بلخ او... ښارونو غونډې تر ډېره په سیاسي منځیو او ښاریو پورې
تړلې(محدوده ) پاتې شوې او وروسته وروسته یې لږو ډېره کلیوالي سیموته پراختیا موندلې ده.
داهم کومه هېښنده (حیرانوونکې ) پېښنه نه وه چې په هرات ښار کې له پارسیوالي او(افشاري)
بلواکۍ سره سره داحمد شاه بابا په څېر یو ځلاند لمر سر راهسک کړی وو او له وړکینې تر
زلمینې یې دغلته ښوونه روزنه تر لاسه کړې او بیا پوځي=سیاسي بوختیاوې هم راخپلې کړې،
خو خپله مورنۍ او پلرنۍ ژبه یې د شعروادب ترکچې رسولې وه. دا ځکه چې له ښایسته ډېر مهال
راهیسې هلته یو ځل بیا یو پښتني سیاسي-اقتصادي برلاسی رامنځته شوی، لکه څنګه چې
وویل شول، د هوتکي غورځنګ او واکمنۍ له مخه هرات ښار د سدوزیو د سیمه واکۍ منځۍ
پاتې وه.

له بده مرغه، زموږ د ستر ټولواکمن د دربیم پښت او په ځانګړې توګه د بدورده شاه محمود له
خوا چې په خپلو سیاسي سودابازیو یې د پښتني ټولواکمنۍ ستنې و ړکولې او پارس ته یې د
خراسان د ډېرۍ برخې په ورپرېښوولو سره تاریخي برید لیکه له ((کویر لوطه ) ) تر هراته
راورسوله، نو د پرسنایزېشن بهیر یې نور هم پسې توند و تېز شو. له سیاسي=اقتصادي پلوه دویم
ځواکمن دراني ټبر ((نورزیو ) ) چې تراوسه د هغه ولایت بشپړ ډېری هم رغوي، د ټبرو دووپېړیو په
اوږدوکې پرله پسې خپله پښتو له لاسه ورکړې. نور پښتني ټبرونه،لکه بارکزي، الکوزي،
الیزي، ساکزي،کاکړ، هوتک، توخي ، مومند ،ساپي، یوسفزي...هم چې له پخوا راهیسې هلته
مېشت ول، پارسي ژبي شوي او که وروسته هم ور لېږدېدلي، په هماغه دویم پښت کې یې
پارسي د پښتو ځایناسې کړې ده. پر 1344ل. کال ماد ((ژبپوهنې اتلس ) ) 5 د ژبنیو او ګړدودي
څېړنو په لړ کې یوازې د کوهسان او ګلران او بیاشینډنډ په ولسوالیو کې د نور زیو پښتو ګړ
دودونه راخوندي کړای شول. په ((اوبې ) ) کې مې د قدوس مومند او په ((پښتون زرغون ) ) کې هم
له کورنۍ نیمې پرته = ښایي داروا ښاد استاد کاووس توخي کورنۍ هم هلته مېشتېدلې اوسي=
د نورو پښتو غږېدونکیو څرک ونه شو لګولای او زیاتره مې پارسي ګړدودونه ثبت کړل. د
غوریانو له ارتې بیرتې ولسوالۍ مې خو وار له مخه لاس مینځلی وو او د ورتګ ستونزه مې
راسپمولې وه. په زړه پورې یې هم دا چې د غوریانو په ګډون د ګردو ولسوالیو بشپړ ډېرۍ
ویونکي له توکمیز پلوه پښتانه او بیا نورزي دي، په کرخ کې بیا زیاتره پارسي ژبي شوي
تیموري، جمشیدي او نور تورکومغولي ټبرونه اوسي او ((زوري ) ) یې خو هماغه پښتون توکمه
سوري دي، دانجیل ولسوالۍ مرواني- شکیباني هم همداسې درواخله. له دغو څخه یوازې د
ګلران او... تورکمنو او د ګذرې د کوندر کلي مغولو مورنۍ ژبې ساتلي دي. په دې ډول د دري

پارسي هماغه پخوانی ((خراسانی=آرې)) ګړدود پر ټوله سیمه برلاسی دی؛ له پخوانۍ او بڅې (قلمرو) څخه یې په بادغیس کې د بالامرغاب او غورماچ ولسوالۍ پښتوژبې پاتې دي او په غور کې ترې یوازې نیاز کلا. سوېل ختیځ خواته یې هم تر ادرسکن وروسته شینډنډ ترګونډو لاندې نیولی او ورو ورو د پښتو کمبله ور بلبښي(نغاړي) ! د لاملونو یو لنډ جاج ترکوم ځایه چې له ټولیزاو په ځانګړي ډول، ژبني- فرهنګي تاریخه را څرګندېږي، د اسلام په درشل کې د هرات او نورو سرحدي سیمو ډېری استوګن پښتانه ول او د عربي ضد ازادیپالو غورځنګونو له مخکښانو څخه ګڼل کېدل، خو داچې د خپلې پښتو پرځای یې د پارسي ژبې د رامنځته کولو او بیامذهبي کولو لپاره لاره هواروله، غوره لاملونه یې په لاندې توګه رالنډېدای شي:

1= د منځني آریاني پېر په وروستیو دوو پېړیو کې ساساني نیواک زموږ لویدیزو پښتني سیمې د نوي پېر پرسنایزښن لپاره یوه پیلامه رابرابره کړې وه،
نو په دربیمه اسلامي پېړۍ کې یې چې د نوي ژبني پېر دربیمه پېړۍ هم وه، د لویو او وړو سیمه واکیو اکر وکر درلود؛ داسې چې له غور پرته په نورو هغو کې د پښتوژبې او ادب کوم څرک نه دی لګېدلی.

2= ژبه د پوهې، فرهنګ، سیاست.. د یوه اوزار او ارابې په توګه له سیاسي= اقتصادي ملاتړ پرته وده او پایښت نه شي موندلی. دا به ومنو چې په اړونده سیمه کې له دېموګرافي او اقتصادي، په تېره ځمکوالي هغه له پلوه ترګردو ټبرونو تل ځواکمن پاتې شوي، خو له سیاسي او ورسره تړلي ښاري ژوند و ژواکه د لرېوالي او بې برخیوالي له لامله یې ژبه ورو ورو کمزورې شوې او بیایې واکمنه سیاسي= فرهنګي هغه له هغو مره اوږده ساماني او تیموري پېر او مخینې سره ځایناستې شوې ده. او داچې ځینولامړخوږکه اومړژوانده غوندې تراوسه ساتلې، په ټولیزه توګه د بشپړ یانیم کوچیاني(sub-nomadic ) ژوند برکت بلل کېدای شي.

3= د تش په نامه پښتني شاهي نظام ناغېړۍ او نانډوله فرهنګي پالیسۍ. په شلمه پېړۍ کې چې له ((سراجي)) او په ځانګړي ډول ((اماني)) روښانتیایي واکپېر سره د سیاسي او فرهنګي غورځنګ په ترځ کې د یوشمېر پښتنو روښاندانو پام پښتو پالنې ته ور واوښت، خو بیاهم د نورو لرې پرتو سیمو په څېر تر ننه پورې د هرات د پښتنو خیال چا و نه ساته. په تېره د ښوونې روزنې په برخه کې یې دومره ناغېړي وشوه چې ان په ګلران او کهسان کې یې هم پر ښوونځیو باندې پارسي ژبه په زوره وتپل شوه. ظاهر شاهي چارواکو له خپلې دروهجنې او غولوونکې پالیسۍ له مخې یوازې پر سرلیکو(سرلوحو) بسنه کړې وه. هغه دا استاد الفت خبره وه چې پر

ادارو او دوکانو باندې پښتو سرلیکې لګولې او دننه یې سر نه ور ښکاره کاوه !
4= د فرهنګي ناغېړۍ دویمه بېلګه یې نانډوله(نامتوازنه) رسنۍ وې. تېره پېړۍ د یوازېنۍ چاپي هغې((اتفاق اسلام)) هم له سرلیکو پرته نوره پښتو له نشته برابره وه او ترڅنګه یې چې کوم ګړۍ نیمه ((کابل راډیو)) او بیا ((افغانستان راډیو)) د لوډسپیکرو له لارې وړاندې کېده، زیاتره پر هماغه پارسي خپرونه بسنه کېدله. نننۍ تلویزیوني هغه یې هم همداسې درواخله.

5= د لاس پر لستوني لویدیز ګاونډي ژبنی=فرهنګي اغېز چې له 1935ز راهیسې یې پر له غښتی بنه راخپله کړې او نن سبایې له نوې خبرتیایي=رسنیزې تېکنا لوجۍ سره یوه بربنډ فرهنګي زبېښاک ته رسېدلی دی. همدا تازه پر تازه د ګډو تېلویزیوني خپرونو په ((پارسي ژبې درېګوټ-مثلث)) کې له ایران او تا جیکستان سره د افغانستان رسمي غړیتوب دغه بهیر یو نوي او هراړخیز پر مختیایي پړاو ته راګډ کړ. ترڅنګه یې په لوستلیکیو(درسي کتابونو) سره ښوونیز=روزنیز سېستم هم ددغه زبېښاک مراندې او ریښې نورې هم پسې ژورې، ټینګې او ترینګې کړې دي.

په دې توګه د دې ژمندویي(تضمین) هېڅ خپل- پردی نه شي کولای چې د هرات څه ناڅه بشپړه پښتوژبې ولسوالي((شینډنډ)) دې تر ډېره د پرسنایزېشن له دومره توند و تېز توپانه بچ پاتې شي !

اخځلیک

1- دوست شینواری: افغانستان په اوېستاکې 59مخ. کابل1369کال.

2= Awestisches Elementarbuch. Heidelberg 1967 H.Reichelt.

3- م.ا. زیار: پښتو او پښتانه د ژبپوهنې په رڼا کې. ساپي پښتو پراختیامرکز، پېښور 2001.

4- زیار: افغانستان مهدِ پیدایش نه، بلکه مهد پرورش فارسی= دری است. پدیده، شمارهٔ سوم و چهارم، لندن، نوامبر 2003میلادی.

5- د افغانستان د ژبپوهنې اتلس پروژه چې لیکوال یې پر بنسټ د 1341او 1345ل. کلو ترمنځ د پښتو او دري پارسۍ په ګډون دهېواد له ګوټ ګوټه د 14ژبو څه له پاسه سل ګړدوده څېړلي او راخوندي کړي ول.

## دپښتو اصل او ريښه

کله چې سړی هغه روايات او نظريات راسپړي چې د پښتو داصل او ريښې په باره کې په مختلفو آثارو کې راغلي دي، نو له راورتي سره دا خبره هرو مرو منی چې (دپښتنو دژبې داصل او ريښې په باره کې هم دنظر اختلاف تر هغه نه کم نه دی، لکه خپله د پښتنو داصل او نسب په باره کې چې دی. ) (۱)

پښتو چا ددېوانو ژبه بللې ده، چا سامي طبو ته ورکش کړې ده او چا په هندوايراني طبو پورې تړلې ده. چا دهندو ايراني ژبو دسترې وني په ندي څانګه پورې مربوط ګڼلې ده او چا يې په ايراني څانګه پورې. چا بيا پښتو اصلاً، د ساکانو پاسيتيانو ژبه بللې ده او چا دهندو ايراني ژبو تر منځ يوه متقله ژبه او د اتصال کړی ګڼلې ده.
د تذکرةالملوک ( ۲ ) مؤلف وايي چې ځينې روايتونه پشتو ددېوانو ژبه بولي. دی ليکي:
(ځينې روايتونه وايي چې افغانانو خپله ژبه له دېوانو زده کړه ، ځينې نور بيا وايي دا دکسی د غره داوسېدونکو ژبه ده ، دافغانانو دا عادتؤ چې ددغو خلکو ښځې او لونړې به يې ترې بوولې او ودونه به يې ورسره کول او ځکه يې نو پښتو طبه ورنه زده کړه او خپله طبه يې چې ابراهيمی (عبری) وه، هېره کړه. ) (۳)

کوم مطالب چې د پښتو داصالت په باره کې ځينې غربي مؤلفينو ليکلي دي، په هغو کې هم بعصی دتذکرةالملوک له افسانوی روايت نه وروسته نه پاتې کيږي. هنري راورتي ليکي:(د پښتو ژبې اافعالو او صماير له خصوصياتو او ځينو نورو مشخصاتو نه داسې ښکاري چې دا يوه عجيبه او لرغوني ژبه او له هرې معلومې طبې نه متفاوته ده. ) ( ۴ )
راورتي وايي ددې خبرې دليل دادی چې پښتانه اصلاً ديهودو دلسو ورکو شوو قبيلو بقايا دي. دی وايي کوم وخت چې دا قبيلې دفلسطين په يهوديه کې اوسدې هلته يې ژبه ديو شمېر نورو قبايلو له لهجو سره ګډه شوه.

کله چې دا قبيلې له خپل اصلی ملکه دهغوی دا اوسنی ملک ،افغانستان ته رواني وې، په لاره کې يې زبه دډېرو نورو ملکونو له ژبو سره هم ګډه شوه.څرنګه چې پدأسې وړو وړو قومونو وېل شوي وو چې له بهر سره يې رابطه او مخابره نه لرله. ځکه يې نو دهر قوم زبې له نورو طبو سره بېخی توپير لاره.راورتي په پای کې ليکی څرنګه چې د پښتو ژبې اساس همدغه ګډه وډه ژبه جوړوي نوله دې امله دا يوه عجيبه او له نورو نه متفاوته زبه ده. ( ۵ )
کله چې راورتي دخپل ګرامر په مقدمه کې د پښتو او نورو ژبو په ارتباط غږيږي، دهغو کسانو

نظريات ردوي چې وايي پښتو يوه آريايي ژبه ده او وايي چې (پشتو زما په خيال د سامي ژبو په كورنۍ پورې اړه لري. ) پدې پسې راورټي كوشش كوي دا وښيي چې پښتو هم په صوتي، هم په صرفي او هم په نحوي لحاظ له له عربي او عبراني ژبو سره تړلې ده. ( ۲ )
راورټي يو ځيرک او ډېرې وسيعې مطالعې خاوند محقق و او له زړه ايراني ژبو په تېره بيا زند سره يې د پښتو نژدې ارتباط درک كړی و. مثلاً يو ځای ليکي:
(نن له اباسيند نه سمدستي لويديځ پلوته داسې يوه ژبه ويل كيږي چې د عباراتو او ساختمان په لحاظ له هرې معاصرې ژبې نه ښځي فرق لري او په غالب ګومن له زند ، پهلوي او عبري نه راوتې ده او دا ژبه پښتو......ده ) (۷)

خو ځرنګه چې د راورټي مطالعه په زړو فارسي او پښتو آثارو كې ډېره پراخه وه او پدغو آثارو كې، چې راورټي په ډېر زيات اهميت ورته قايل و ، پشتانه په مکرر او متواتر ډول بني اسرائيل بلل وي وو او خپله پشتنو هم دا روايت تائيداوه، نو له دې امله دی تر پايه له سامي ژبو په تېره بيا عبري سره د پشتو د اصل او ريښې په نږدې ارتباط كلک ودريد او ورنه تېرنه شو. سرويليم جونز، د بنګال د شاهنشاهي آسيايي ټلنې د مؤسسې رئيس، له راورټي نه پخوا پشتو له سامي ژبو سره ورته بللې وه. جونز د بنګال د آسيايي ټولنې په مجله كې په هغې يوې لنډكۍ اوبې درنګه تبصره كې چې د يوې تاريخي ليکنې په ارتباط يې وكړه، وويل چې (پښتو كلداني ژبې ته ډېره زياته ورته ده ) (۸)

مګر د پښتنو د تاريخ او ژبې يو شمېر ځيړونكو او دژبنيو مطالعاتو مقتدرو پوهانو له كلداني او نورو سامي ژبو سره د پښتو ارتباط په قاطعيت رد كړ او وې ويل چې پښتو له اصله يوه آريايي ژبه ده.

كلاپروت لومړني وتلی مستشرق ؤ چې په كال ۱۸۱۰ كې يې د آسيايي ادبياتو د آرشيف په اول ټوک كې دا نظريه په صراحت رد كړه چې ګوندې پښتو له سامي ژبو سره تړلې ده. ده وليکل چې ( د پښتو او سامي ژبو ترمنځ نه په كلماتو كې اندكترين شباهت شته او نه په ګرامري جوړښت كې. ) (۹)

منستو ارټ الفنستن، چې د پشتنو د ټلنې او تاريخ د مطالعې په برخه كې د ډېرو وچ صلاحيت خاوند و ،په كال ۱۸۱۴ كې د پښتو او كلداني ژبې د ورته والی په باره كې د ويليم جونز خبره رد كړه او ويې ليکل چې ده دوه سوه او اتلس پښتو كلمې د يو شمېر نورو ژبو له معادلو كلمو سره مقايسه كړې. خو :( له دې وونه يوې هم له عبراني او يا كلداني سره اندكترين شباهت نه لاره. ) (۱۰)

يو بل انګريز مولف، جان ملکم، هم د فارس په تاريخ کې الفنستن ته ورته نظر څرګند کړ او ويې ليکل چې(د عبري او پښتو يا د افغانانو د معاصرې ژبې تر منځ د نژديوالي هيڅ څرک نه لګيږي).
(۱۱)

؟؟؟؟؟؟۱۳ ۱۲؟

په يو بل اثر کې هم چې د هرې مځکې انجيل نوميږي او په کال ۱۸۴۸ کې بېګستر خپور کړی دی، د پښتو د ساميت نظريه په قاطع ډول رد شوې او ليکل شوي دي چې پښتو (د سامی ژبو هيڅ خصوصيات نه لري.) (۱۴)

البته يو زيات شمېر غرتی مؤلفينو او دژبنيو مطالعاتو پوهانو نه يوازې دا چې له ډېر پخوانه د پشتو د ساميت نظريه رد کړې، بلکه دا يې هم په ډاګه کړې ده چې پښتو يوه هندو اروپا يی ژبه ده. بيا هم کلاپروت لومړنی غربی محقق دی چې پښتو يې يوه آريايی ژبه وبلله او دا عقيده يې په ډېره کلکه په ډاګه کړه چې(پښتو بې شکه د هندو ، جرمانيک طبو د سترې ډلې يوه څانګه ده.)
(۱۵)
دژبنيو مطالعاتو ډېر لوی عالم پاټ هم پشتو په قاطع ډول آريايی ژبه وبلله. لوونتال پدې ارتباط دا سې ليکی:

پاټ چې بل دده په سويه ستر دفق اللغه عالم نه دی تېر شوی، يوه شيبه هم پدې صرفه نه کوي چې پشتو د هندو اروپايی ژبو په کتار کې ودروی.) ( ۱۶ )
ډورن هم د پښتو منتخباتو په مقدمه کې پښتو يوه سوچه آريايی ژبه وبلله او ويې ليکل چې (پښتو د هندو فارسی ژبو په لويه کورنۍ پورې مربوطه ده.) ( ۱۷ )
اما هر څومره چې دژبې تاريخي مقايسوي څېړنې زياتره دعلم حيثيت غوره کاوه، دژبو په باره کې مطالعه هم هغومره دقيقه کېدله. د پشتو په برخه کې هم پوهانو يوازې پدې قناعت ونه کړ چې د هندو - ايرانی ژبو په کورنۍ پورې مربوطه آريايی ژبه يې وبولی، بلکه غوښتل يې دا هم معلومه کړي چې د دغې لويې کورنۍ له کومې څانګې سره خاص ارتباط لري.
څرنګه چې په پښتو کې د هندو ايرانی ژبې دلويې کورنۍ د دواړو ډلو خصوصيات دورايه او په وفرت موجود دي، نو په اول کې چا پښتو په هندی ډله پورې وتړله او چا په ايرانی ډله پورې.

کوم غربی ليکوال چې پښتو يې لومړی ځل د هندو ايرانی ژبو له هندی ډلي سره مربوطه وګڼله هغه رابرت ليچ دی.ليچ په کال ۱۸۳۹ کې د بنګال دآسيايی ټولنی په مجله کې د پښتو ګرامر په باره کې يو مضمون، چې په حقيقت کې په لويديځ کې د پښتو ګرامر لومړنۍ برخه ده. خپور کړ او دهغه په

مقدمه کې یې د پښتو او سنسکرت د اصواتو ښیي چې پښتو په قاطع ډول د سنسکرت ښه لري. (۱۸)

اما چا چې پښتو د هندي ژبو د یوې ښایسته وسیعې تاریخي-مقایسوي مطالعې په نتیجه کې د هندو ایراني ژبو له هندي څانګې سره مربوط وګڼله هغه رودولف هورنل دی. هورنل په خپل هغه اثر کې چې د ګاډي ژبو مقایسوي ګرامر نومیږي، لیکي چې د هند شمال غربي سرحد ترنهایي حدودو پورې پراکرت ژبې ویل کېږي. (خوله دې ځای نه ها خوا پښتو او کافري ژبې پرتې دي.) دی خبرې ته دوام ورکوي او لیکي: (ترومپ په خپلو هغو مقالو کې چې د پښتو او کافري ژبو په باره کې یې لیکلې دي، له ګاډي سره د دغو دوو ژبو نږدې والی ته توجه وراړولې ده.......مګر خبره له دې نه وړاندې ځي او (د غه ژبې) خصوصاً پښتو د مګاډي پراکرت ژبې مسلم خصوصیات لري.) (۱۹)

هورنل پدې پسې له ځینو ګاډي ژبو سره د پښتو او نورستاني ژبو یو شمېر ګډ خصوصات او ممیزات په ګوته کوي او په پای کې لیکي چې (له دې نه څرګندیږي چې مګاډي پراکرت او پښتو او کافري ژبې په لرغونې زمانه کې ښېخې سره نژدې وې او حتی یوه ژبه یې جوړوله.وروسته سور اسیني ژبې د مګاډي او دغو ژبو تر منځ واقع شوې او مګاډي ژبه یې ورو ورو د شرق په لور بیخي لرې تېل وهله.) (۲۰)

په پښتو کې د هندي آریایي ژبو خصوصیات دومره بارزوو چې حتی فرانسوي لوی ختیځ پوه جېمز ډارمستتر هم په اول سرکې په خپل هغه اثر کې چې هند ته د فلالوجیکو مطالعاتو د سفرریوټ نومېږي او په کال ۱۸۸۷م کې خپور شوی دی، دهندو ایراني طبو په هندي ډله پورې مربوط وګڼله. (۲۱)

اما چاچې پښتو اول وار دهندو ایراني ژبو دونې له ایراني څانګې سره دوتړله هغه شیلې ډیور دی.ده په خپل هغه اثر کې چې (دمقایسوي فلالوژۍ اجمال) نومېږي او په کال ۱۸۵۳ کې خپور شوی دی، پښتو، اساساً، د ایراني ژبو په کتار کې ودرو له خو په عین وخت کې یې وویل چې پښتو ځانته خاص موقعیت لري.دی د ایراني ژبو په بحث کې لیکي چې د افغانستان ژبه یعنې پښتو هم په همدې څانګه پورې ارتباط لري خو (ځانته یې په یوه خاصه او ابتکاري طریقه انکشاف ورکړی دی.) (۲۲)

دژبنیو مطالعاتو لوی عالم ماکس میولر هم پښتو له ایراني ژبو سره مربوطه وګڼله. ده په خپل هغه اثر کې چې عنوان یې ( په شرق کې د جګړې د مرکز ژبې ) دي او په کال ۱۸۵۵م کې خپور

شو ،ولیکل: (افغانی یاد پښتنو ژبه......د خپل ګرامر په لحاظ دفارس دژبو له ډلې سره تړلې ده. (۲۳)
میو لرورو سته په خپل یوه بل اثر (دافغانانو زبه ) کې چې په کال ۱۸۲۲م کې خپور شو ، خپله خبره نوره هم تصریح کړه او پښتو یې دایرانی ژبو په شرقی ډله پورې مربوطه وګڼله او پدې ترتیب یې له (زند ) سره ونښلوله. (۲۴ )

پاټ په کال ۱۸۳۳م کې اروپایی ژبې په پنځو کورنیو وېی او پښتو او فارسی دواړه یې په دوهمه کورنۍ پورې مربوطې ګڼي. (۲۵ )

اما ځینو پوهانو بیا پښتو دهندي او ایرانی ژبنیو ډلو ترمنځ یوه ځانته او مستقله ژبه بللې ده. ډاکتر ارنست ترومپ چې دخپلو ډېرو وسیعو ژبنیو مطالعاتو او څېړنو په لړکې یې پښتو ګرامر هم لیکلی دی، پښتو دهندي او ایراني ژبو ترمنځ یوه اتصال کړۍ بولي او لیکي: ( پښتو کلمات مستقیماً له ګاونډیو پراکرت لهجو ،په تېره بیا پنجابی او سندهي نه مشتق شوي دي، دصرف او ترکیب دعملیې دساختمان له نظره سندهی ته ښخی زیاته ورته ده: پښتو په تېره زمانه کې دمتعدی افعالو له نظره له سندهي سره کامل مطابقت لري او یوازې دسندهي ژبې پر اساس تشریح کیدلی شی.مګر پښتو په هیڅ صورت کومه دپراکرت لهجه نه ده ، بلکه یوه زړه مستقله ژبه ده چې له هندی آریایی ژبو نه دایرانی ژبو کورنۍ ته دبدلون لومړنۍ مرحله ښیی او ځکه نو ددواړو خصوصیات او ممیزات پکښې څرګند دي، خو بیا هم دپراکرت خصوصیات زیاتره پکې بارز دي. دپښتو دا خصوصیت دهغې له جغرافیایی موقعیت سره هم اړخ لګوي. ) ( ۲۶ )
پروفیسور اډیلنګ Adelung هم پښتو یوه ځانته مستقله او خاصه ژبه وبلله. (۲۷ ) او شیلی ډیور هم، لکه څنګه چې وړاندې وویل شول، وایي چې (پښتو ځانته په یوه خاصه او ابتکاري طریقه انکشاف ورکړی دی. ) (۲۸ )

ډورن خپله دپښتنو په باره کې هم همدا نظر لري او وایی چې پښتانه، نه د ایرانیانو له پښته دي او نه دهندیانو ، بلکه داددغو دواړو سترو ولسونو تر منځ یو مستقل قوم دی. ( ۲۹ )
جان ملکم هم پدې برخه کې ډورن ته ورته نظر لري او لیکي چې (پښتانه له فارسیانو او هندیانو نه متفاوت خلک دي. ) (۳۰ )

اما دچا خبره چې دپښتنو دژبې دینبې او اصالت دټاکلو په برخه کې د کانې کرښه شوه ،هغه فرانسوي لوی عالم او ستر مستشرق جېمز ډار مټېټر ؤ. ده دخپل هغه درانه او ستر اثر په اوله برخه کې چې دافغانانو ولسی سندرې نومېږي تو پشتو او زند په پوره تفصیل اوډېر دقت سره مقایسه

کړې او په پای کې دې نتیجې ته ورسېد چې پشتو له زند سره دومره نژدې ارتباط لري، لکه نوې فارسي يې چې له زړې فارسي سره لري. پدې ډول ډار مستېر دیوه واقعي طالب العلم په حيث پخوانۍ نظریه دنویو حقایقو په رڼا کې بدله کړه او ښېنو یې په قاطع ډول دهندو ایراني ژبود لویې ډلې دايراني ډلې په شرقي ډلګۍ پورې مربوطه وګڼله او په ډاګه يې کړه چې پښتو زند ته ښېخی نژدې یوه بله ژبه ده. خو پښتو دشمالي هندي ژبو عناصر هم په ښېخی خلاص لاس او پراخه پیمانه کسب کړي دي. (۳۱)

جورج مارګنستېرن چې دپښتو ژبې په تېره بیا دهغې دتاریخي-مقایسوي څېړنې په برخه کې له ډارمستېر نه راوروسته دډېر اوچت صلاحیت خاوند دی، دډار مستېر نظر کاملاً تائیدوی. خو په عین وخت کې پښتو په شرقي ایراني ژبو کې دساکانو لرغونې ژبې ته دومره ورنږدې بولي چې وایي پښتو له اصله، غالباً، یوه دساکا لهجه ده. دی خبرې ته دوام ورکوي او وایي البته ددې امکان نشته چې سړی دې ددغو دوو ژبو ډیرې نږدې اړیکی تشبیت کړي. ( ۳۲ )
دمارګنستېرن خبره ځینې نور مؤلفین هم، اساساً، تائیدوي. ( ۳۳ )
که سړی دمارګنستېرن نظریه منی او پښتو دساکا یوه لهجه ګڼی، نو معنا به یې داوي چې پښتو لږ رلږه دوه زره کاله پخوا معموله وه. ځکه دساکانو مشران ل میلاد نه تخمین سل کاله دمخه یعنې د (۹۷ ق.م.) په شاوخوا کې، په ننني پښتونخوا کې مسلط شول او په پنځم میلادي کال کې یې سلطه پای ه ورسېده او پدې پسې یې ژبه هم لادرکه شوه.
اوس سوال دادی چې پښتو او ساکاخو، اساساً دایراني ژبو په شرقي ډله پورې مربوطې ژبې دي،نو پښتو دا دومره قوي دهندي ژبو خصوصیات له کومه کړل؟ دا سوال دوه احتمالی ځوابونه لرلی شي. یو دا چې پښتو له اصله یوه ایراني ژبه وه او هندي ژبو ډېر زیات عناصر، لکه څنګه چې ډارمستېر او نور وایي، وروسته ور داخل شوي دي. بل دا چې پشتو له اول سرنه داسې یوه ژبه وه چې هم يې دهندي ژبو خصوصیات لرل او هم دایراني ژبو. راځئ چې لومړی دا اول احتمال وڅېړو.

دیوه قوم ژبې ته دیوه بل قوم دژبې په ډېره وسیعه پیمانه خصوصیات، معمولاً، هغه وخت ور داخلېدلی شي چې لومړی قوم ددوهم قوم تر ډېرې قوي او اوږدې سیاسي او ثقافتي سلطې لاندې راغلی وي. خو تاریخ شاهد دی چې دپښتو ملک په اسلامي عصر کې هیڅکله هم دهندوستان تر دغه راز سلطې لاندې نه دی راغلی، بلکه پدې دوره کې ډېر ځله هندوستان دافغانانو او پښتنو تر سیاسي سلطې لاندې راغلی او اساساً همدا کار په هند کې داسلام او اسلامي ثقافت د خپریدو سبب ګرځېدلی دی. اما له اسلام نه وړاندې داسې یوه دوره تېره شوې چې په هغې کې دپښتنو ملک دهندوستان تر یوې قوي او طولاني سیاسي او ثقافتي سلطې لاندې راغلی و. دا دوره

دموریا دکورنۍ دواکدارۍ عصر دی چې دچندراګوپتا دواکدارۍ له سرنه ( **۳۲۳**ق.م. ) پیل شوې او دآشوکا په مرګ ( **۲۲۷**ق.م. ) پای ته رسېدلې ده او نږدې سل کاله یې دوام کړی دی. په واقعیت کې همدا یوازینۍ دوره ده چې کېدی شي پښتو ته دندي ژبو خصوصیات په دومره وسعت او قوت ور ننوتي وي او که دا خبره داسې وي نو پښتو به لږ تر لږه یوه دوه نیم زره کلنه او حتی تر هغه نه هم زړه ءبه وي. اما کله که سرې هغه اول احتمال وني او داسې وګڼي چې په پښتو کې دهندی او ایراني ژبو خصوصیات ان دوال سرنه موجود وو ، هلته نو بیا دترومپ نظیه تقویه کېږي او پښتو دندي او ایراني ژبو تر منځ یوه ډېره لرغونې داتصال کړۍ یا په بل عبارت ددغو دوو کورنیو دیو شمېر ژبو دانشعاب منشأ ګرځي. ددوهم فصل یادداشتونه:

١ )راورټی،هنری،پښتو ګرامر،مخ١٧.
**۲** ) تذکرةالملوک دپښتنو تاریخ دی او راورټی دخپل ګرامر په مقدمه کې معرفی کړی دی.
**۳** )راورټی، پښتو ګرامر،مخ٨.
**۴** )راورټی، پښتو ډکشنري،مقدمه،مخ١٢.
**۵** ) همدا اثر ، همدا مخ
**۶** )راورټی،پښتو ګرامر،مقدمه،مخ **۲۳-۲۲**.
**۷** )همدا اثر،مخ**۴**.
**۸** )جونز ویلیم، آسیایي مطالعات،ټوک**۲** ،مخ **۱۷۲**.
**۹** ) راورټی، پشتو ګرامر، مقدمه،مخ١٧.
١٠ )الفنستین،منستورات،دکابل سلطنت،مخ١٩١-١٩٠
١١ )ملکم،جان،دفارس تاریخ،ټوک**۲** ، مخ **۵۹۷**.
١٢ )ډورن،برنارد ،دافغانانو تاریخ ، یادداشتونه، مخ**۲۵**.
١٣ ) ډورن،پښتو منتخبات، مقدمه،مخ**۲**.
١۴ )لونتال،ایسیدور ،دبنګال دآسیایي ټولنې مجله،ټوک **۲۹** ،کال١٢٠م مخ **۳۲۵**
**۱۵** )راورټی، پښتو ګرامر،مقدمه ، مخ ،١٧.
١۶ )لوونتال، مخکې یاده شوې خپرونه،مخ**۳۲۵**.
١٧ )ډورن،پښتو منتخبات، مقدمه،مخ**۲**.
١٨ ) لیچ رابرت، دبنګال دآسیایي ټولنې مجله،ټوک٨ ،مخ١ ،کال١٨٣٨.
**۱۹** )هورنل،رو دولف دګادي ژبو مقایسوی ګرامر ، مقدمه،مخ**۳۳**.
٢٠ )همدا اثر ،مقدمه،مخ**۳۴**
٢١ )ګریرسن،جورج،دهند دژبو سروې ،ټوک١٠ ،مخ **۹**.

۲۲ )دبورشیلی،دمقایسوی فلالوجی اجمال،مخ ۲۹۹.
۲۳ )میولرمکس، په شرق کې دجګړې دمرکز ژبې،مخ۳۲.
۲۴ )ګریرسن،جورج،دهند دژبو سروې،ټوک۱۰مخ۹.
۲۵ ) لونتال، مخکې،یاده شوې خپرونه،مخ۳۲۵
۲۶ )ټرومپ،ارنست،پښتو ګرامر،مقدمه،مخ۱۲.
۲۷ ) راورټی، پښتو ګرامر،مقدمه،مخ۱۸
۲۸ ) شیلی ډېر،مخکی یاد وی اثر،مخ۲۲۹.
۲۹ ) ډورن،دافغانانو تاریخ،یادداشتونه، مخ۷۲ (انګریزی )
۳۰ ) ملکم،جان،دفارس تاریخ،ټوک۱ ،مخ۵۹۷.
۳۱ ) ګریرسن، دهند دژبو سروې، ټوک۱۰،مخ ۹.
۳۲ ) مارګنسټرن، جورج،اسلامی دایرةالمعارف ،ټوک۱ ،مخ.۲۲.
۳۳ ) اولاف کرو ، دي پټانز ،مخ۲۸-۲۶

## د پښتنو په اړه نوې څرګندونې

د پښتنو په اړه ګڼ شمېر څېړونکو او لرغونپوهانو (په تېره په وروستيو دريو پېړيو کې) اوږدې څرګندونې او څېړنې تر سره کړې دي. يو شمېر کورنيو دښمنانو او بهرنيو يرغلګرو که له يوې خوا يې پښتانه د وسله وال تيري له کبله وژلي او بې کوره کړي دي خو له بلې خوا يې د غچ او کسات اخستلو له بابته دغه ستر او مېړني اولس ته فرهنګي زيانونه هم رسولي دي. ددې ولس لويه فرهنګي شتمنۍ يې يا لوټ کړې او يا خو يې له مينځه وړې ده. له دې سربېره بهرنيو (په سر کې انګليس او ايران د بېلګې په توګه يادوو) خپلو ليکوالو ته دنده سپارلې وه چې ددغه تېر او توکم په هکله شکونه او غولونکي اندونه د خپلو څرګندونو له مخې ډاګيزه کړي. نو ځکه خو دښمنانو په دښمنۍ او دوستانو په ناپوهۍ داسې بې بنسټه خبرې چې ګڼې پښتانه ځوک دي او له کومه ځايه راغلي دي؟ چاغې کړې دي. له نيکه مرغه چې وروستيو څېړونکو دا خبره سپينه کړه چې پښتانه په ختېه اريايان دي خو دا خبره يې هم ډاګيزه کړې چې يو شمېر د سيمې ليکوال او د لويديځو هېوادو څېړونکي رښتيا چې د انګرېزانو لاسپوځي وو او دغو (ګورګانيانو، صفويانو او قاجاريانو) لاسپوځو د خپل ناسپېڅلي چوپړ له بابته د دغو سياسي او فرهنګي دښمنانو د خوښۍ لپاره داسې په ناسمو څرګندونو لاس پورې کړی چې ساری يې په تاريخ کې لږ تر سترګو کېږي. هخامنشيانو، ساسانيانو، ترکانو، چينيانو، عربانو، چنګېزيانو، د هند ګورګانيانو او د ايران صفويانو او قاجارانو او نورو له افغانانو سره له سياسي دښمنۍ سربېره د فرهنګي دښمنۍ له کبله هم له دښمنۍ ډک چلند کړی دی. ولې يوه خبره بايد هېره نه کړو چې يو شمېر څېړونکو او لرغونپوهانو د خپلې سپېڅلې دندې په رڼا کې زيار ايستلی چې د پښتنو او افغانانو د څرنګوالي او څومره والي په اړه بې پرې داسې څه وکاږي چې اوسني او راتلونکي نسلونه له تاريکۍ نه وژغوري او يوه سمه لاره ورته ور په ګوته کړي.ليکوالو او څېړونکو پخپلو علمي هاندو هڅو کې دا خبره سپينه کړې چې پښتانه اريايان دي او پښتو د هندو اروپايي ژبو څخه هغه ژبه ده چې په هندو اريايي څانګه کې راځي، بيا د دغې څانګې اريايي ډلګۍ کې شامليږي او د اريايي ډلګۍ په شمال ختيځ ښاخ پورې اړه لري ... اوس چې لرغونپوهانو او ژبپوهانو بې بنسټه او غولوونکو اندونو او شکونو ته د پای ټکی ايښی دی، اوسني او راتلونکي کول ته اړينه نه بريښي چې تېرې زړې ببولالې بيابيا پخپلو ليکنو کې را غبرګې کړي. وړانديز دا دی چې د ساينس او پرمختلې تکنالوژۍ په رڼا کې ددې اولس پيدا ايښت او پايښت د تاريخ او ژبپوهنې له مخې په نوي علمي ميتود نوې څېړنې پيل کړي. دا چې د کيس عبدالرشيد افسانوي شته والی په روايتونو کې لرې يا ډېرې ريښې ځغلولې دي دا د اوږده مهال خبره نه ده خو په دې ډول افسانوي

خبرو غور غوره برېښي لکه ستر کهزاد چې په ورته څېړنو تیاره ګوټونه رڼا کړي دي. په تېره د غرغښت یا ګرشاسب په څېړنه کې چې له یوې خوا یې د خپلو علمي څېړنو نچوړ وړاندې کړی او له بلې خوا یې د ستر شاعر "حکیم اسدي طوسي" شعرونه تفسیر کړي او څېړلي دي. نوموړي په دغه کتاب کې د بیټني (بیټ=اتریت)، سړبن (سروند) او په تېره د غرغښت (ګرشاسب = غرشاسب ...) په اړه اوږدې خبرې کړې دي او داسې یې په ګوته کړې چې دغه پښتون مېړه د (2400-3000 ) کاله د مخه ژوند کړی دی. "که چېرې د اوستا له مخې د دغه ستر اتل د ژوند نېټه وسپړو ... نو د غرغښت –ګرشاسب ژوند د 2400 او یا 3000 کالو په شاوخوا کې اټکلېدلی شي ... زه ددې اند پلوی یم او تاېډوم یې. " (وګورئ غرغښت یا ګرشاسب کهزاد لومړی مخ).

فرانسوي لرغونپوه "دارمستېټر "ګهرشاسب" د کابل د یوه اتل په نوم پېژني. دارنګه تاریخپوه کهزاد بیټ نیکه یا بیټن له دې سربېره د "اترت" په نوم هم یاد کړی دی او ډاګیزه کړې یې ده چې دا د اوستا په کتاب کې راغلی نومونه دي که چېرې "اترت" د "اترط" په بڼه هم وکارول شي کوم باک نه لري .نوموړي د اترت (بېټني ) په اړه لیکلي دي: "اترت د نورو شهزادګانو په پرتله ډېره واکمنۍ چلولې ده ... " (غرغښت، ګرشاسب کهزاد 8 مخ) همدا راز د هېواد نامتو تاریخپوه غبار په دې اړوند کښلي دي: "... ډېر نامتو اتلان زموږ د هېواد په سیستان کې را پورته شوي چې دغه اتلان د جمشید له پښته دي... جمشید چې د زابلي کورنګ شاه له لور سره واده وکړ له هغې څخه د "تور" په نوم زوی وزېږېد . له هغه څخه "شید سپ" له نوموړي څخه (تورګ) او له طورګ څخه "شم" له هغه څخه "اثرت" او له نوموړي څخه "ګرشاسب" (غرشاسپ) او له ګرشاسپ څخه "نریمان" له هغه نه "سام" له سام نه "زال" او له زال نه "رستم" وزېږېد . " (تاریخي جغرافیه 277مخ) د سیستان په تاریخ او "احیای الملوک" کې هم ددې خبرې پخلی شوی چې د "اثرت" زوی "ګرشاسپ" د خپل سفر په ترڅ کې د انار او خرما ونه ولیده چې له بابته یې د سیستان بنسټ کېښود . داسې هم ویل کیږي چې ساکان په ( 136-128 مخزیږدې کې ) دغې سیمې (زرنګ =سکستان=سیستان=سجستان) ته راغلل نو ځکه دغه سیمه په یادو شوو نومونو ونومول شوه. د هېرودت له انده کارو: "... اروپایي ساکانو ځانونه "سکلت" Scoolotes بلل ... داریوش هم ساکانو "سکه" بللي دي ... "(پښتو او پښتانه ...2مخ). ولې هغه اریایي ساکان چې مخ په مینځنۍ اسیا را مات شوي دي دا د هغو ساکانو پاتې شوني دي چې د اومې مخزیږدې پېړۍ په ږومبیو کې د ققفاز له غرونو را واوښتل نو ځکه خو "د ساکانو ژبه سره توپیر لري او لویدیز ساکان له ختیزو ساکانو سره د ژباړن په وسیله خبرې اترې کوي " (کله چې ساکان د اوسني افغانستان ځنو سیمو کې ځای په ځای شول او بیا کله چې د واک او تاج څښتن شول نوموړي د هېواد شمال ختیزې او شمال لویدیزې سیمې ونیولې او بیا یې هر لوري ته مخه کړه چې په پای

کې ان تر هندوستانه پورې پر مخ لاړ. په ښکاره خو افغانانو (پښتنو ) د غزنوي محمود او نورو غزنوي شاهانو د لښکر یوه ستره برخه جوړوله. مګر په غور مېشتو هغو خپله ازادي ساتلې وه او ښايي دا سې شاهان يې درلودلي چې آره يې د لرغوني آريانا يوه ضحاک نومي ټولواک ته رسيده. (الفستېن 9-158 مخ ) ډېرو لرغونپوهانو او څېړونکو ضحاک د سهاک مترادف ګڼلی نو ځکه خو "همداسې اساطيري "ضحاک کيدای شي ديو تاريخي واقيعت "سهاک" زبات شي.(زيار 142مخ) لکه څنګه چې د ضحاک په اړه اساطيري انګېرنې ځای ځای د افغانستان په لرغوني تاريخ کې ګورو دا رنګه د غرغښت، بيتېن ، سړبن(اترط ، ګرشاسب ، سرند ) افراسياب، هوشنګ( Hio Shengah ) ، يما (يم-جم-جمشيد ) او د نورو په اړه هم اوړدې څرګندونې شوي دي ګ که چېرې ضحاک د " ساکو " معرب وي نو ساکانو خو د افغانستان په لرغوني تاريخ کې وړ ځای تر لاسه کړی دی او د دا سې يوې لويې واکمنۍ بنسټ يې کېښود چې پاتې شونو يې په لسګونو کلونو حکومت وکړ ګ هغه مهال چې هخامنشيانو د شپږمې مخزيږدې پېړۍ په شاوخوا کې په افغانستان تېری وکړ په پرلپسې توګه يې (539 ق م – 545 ق م ) يو د بل پسې باختر، ستا ګيديا (د افغانستان مرکزي سيمې) ، سيستان، بلوچستان او د ګندهارا سيمې لاندې کړې ولې افغانستان شپږ کاله د "کوروش " له پوځ سره جګړه وکړه چې په پای کې د هغې خونړۍ جګړې له بابته چې په کاپيسا کې پېښه شوه پخپله کوروش په 529 ق م کال کې ووژل شو. دا د ليکلي تاريخ يوه پاڼه وه چې ددې جګړې يادونه کوي خو لکه څنګه چې د لرغوني باختر د بنسټ په مهال ليک او لوست نه وو چې د هغه مهال ټولې فرهنګي شتمنۍ يې د کتاب په بڼه کښلې وای نو ځکه خو نا لوستو دغه پېښې د اولسي کيسو په بڼه (پلکور ) سينه په سينه او خوله په خوله له يوه کول نه بل کول ته غبرګې کړې دي ... اوس نو څېړونکي دېته اړ دي چې اساطيرو ، اولسي کيسو او يا لږ ترلږه لرغونو اوستايي او ويدي اثارو ته پاملرنه وکړي او د يوه عالم خبره چې "تاريخ په افسانه کې دي " په دغه بنسټ خپلې ليکنې بشپړې کړي. د ساري په توګه "هيوشنګه " Hio – Shengah سره ډېر ځله په اوستا کې د "پره دات " پيشدادي نسبتي صفت راغلی دی او بيا "پيشداديان " زموږ په لرغوني تاريخ کې وړ ځای لري. که چېرې "هوشنګ " دارياپانو لومړی نيکه ګڼل شوی په "ويدي " سرودونو کې بيا د ارياپانو لومړی مور او پلار "يم " او "يمي " ګڼي. بيا زموږ د هېواد په لرغوني تاريخ کې لکه څنګه چې پيشداديان پېژنو دا رنګه "يم، يما ، جم او جمشيد " هم پېژنو . د اوستا په لرغونو "ګاټونو " کې "يما " د "يمه " په بڼه کښل شوی دی. غرشاسپ يا ګرشاسپ هم په اوستايي متونو کې د يوه ستر او زړور اتل په څېر په ګوته شوی دی او زياته شوې ده چې دغه اتل تر کابله را ورسيد (کابل د واکرته په بڼه انځور شوی چې بيا په پهلوي کاپول ژباړل شوی دی) او په يوه ښکلې نجلی مين شو... "د سيستان د تاريخ په حواله د ښار بنسټ ګرشاسپ ايښی دی. "

(لرغوني اريايان خيرمحمد ساد 96مخ ) له يوې خوا ځېړونکي کاږي چې د سيستان بنسټ "غرشاسب " ايښى او له بلې خوا کورني او بهرني ځېړونکي په دې اند دي چې د سيستان نوم د ساکانو د ټبر نسبتي نوم (سکه، ساک، سهاک، سيستان، سکيستان، سکيتان، سستان) دى. په تاريخ کې ځنو ځېړونکو د ساکانو په اړه دا څرګندونې هم کړي چې دغه ټبر په لومړي سر کې دوه مهمې پلازمېنې جوړې کړې. لومړى چې دغه توکم د پامير د غرونو څړځايونو ته ور شېوه شو نو بيا يې د يوې وړې واکمنۍ بنسټ کېښود او د "کنګ دژ "(د اوسني کندز نوم هم له دغه نوم نه اخستل شوى دى ) سيمه د دوى د واکمنۍ پلازمېنه ځکه ګڼل شوې هغه مهال چې ساکان د آمو له سيند نه راپورې وتلي نو ښايي چې دغه ځاى يې نيولى وي. له دې سر بېره داسې روايتونه هم شته چې ښايي په "کنګ دژ " کې به يوه شاهي ماڼۍ له پخوانه ودانه وه چې د افراسياب له تېښتې وروسته "کياني " ټبر دغه ځاى لاندې کړى وو. د ساکانو دويم ټاټوبى او د واکمنۍ لويه پلازمېنه يې په سيستان کې تېره شوې چې ان تر هندوستانه پورې رسيدلي دي او لرغونپوهان په دې اند دي لکه څنګه چې د مخه ورته اشاره وشوه د ياد شوي نوم اصلي ريښه د دوي له نوم نه را ولاړه شوې ده. که چېرې ضحاک "سهاک " وي اويا "ساک زايي " اسحق زايي وي نو د دې کلمې اصلي بڼه "ساک " دى چې په ډېرو لرغونو متونو کې د "ساکا " په بڼه کښل شوې ده او په هخامنشي ډبرليکونو کې دغه کلمه د "saka " په بڼه انځور شوې چې په تورات کې "اشکوز =اشکناز " په يوناني متونو کې "Skuthui " ياده شوې ده. په لندن کې خپور شوى او ژباړل شوى د هيرودت "Herodotus " نامتو اثر (کال 1954 –215 مخ ) چې د ځنو قومونو نومونه په کې راغلي دي له ساکانو سربېره "اپارتي "، باکتريا Bactrains ، پکتيکا Pactyica او نورګ همدا ډول "ايران د هخامنشيانو په مهال "کتاب کې هم ډاکتر مرتضى احتشام ( 158 مخ ) يادې شوې خبرې پخپل ګټور اثر کې را غبرګې کړي دي که چېرې د بېلابېلو ځېړونکو غبرګونونه له پامه تېر کړو وبه ګورو چې ډېرو لرغونپوهانو ساک "سهاک "ګڼلي، اپريتي يې "اوسني اپريدي " ښودلي، بختيان يې "پختون = پښتون= پکتون " په ګوته کړي دي.تازيان اندر حصاري قافله درقافله "بختيان " اندر صحاري کاروان در کاروان "فرخي "کوهها در هم شکسته ابرها بر هم زدند تازيان اندر عنان و بختيان اندر مهار "مسعود سعد سلمان "بختيان چو نوعروسان پاى کوبان درسماع اختران شب پلاس وچرخ کوهان ديده اند پختګان "بر "چون بختيان افتان و خيزان مست شوق ني نشاني ازمى و ساقي ومى دان ديده اند "خاقاني " اويادا: بختيان نفس من که جرس دار شوند ازدهان جرس افغان خراسان يا بم "خاقاني " دارنګه "سراولف کېرو " هم په ساساني پېر کې د "درانيو " او "يوسفزو " يادونه کوي له دې سربېره يو شمېر ځېړونکي او لرغونپوهان باميزايي باميزيان بولي چې د اوسني باميانو په شاوخوا کې مېشت او ودان ووګ اکاډميسن جاويد پخپل کتاب اوستا

کې کارېلي چې په "اراکوزيا " Arachosia "کې هغه سيمې راځي چې اوس د غزني، سليمان غرونو شاوخوا سيمې تر اندوس پورې په غېږ کېښيسي او د دغه نوم اصلي ريښه "الکوزی" دی (اوستا –جاويد 26 مخ) د الکوزي =اراکوزي د کلمې په اړه په اوستا کې هم يادونه شوې او دا کلمه د Harahwati په بڼه کښل شوې، دا رنګه په يوناني ليکدود کې بيا دا کلمه Arachosia په شکل انځور شوې ده ګ له يادو شوو څرګندونو نه ډاګيزه کيږي چې پښتانه او يا هر قوم او ټبر يو ناڅاپه د نړۍ پر مخ نه دی پيدا شوی. هرومرو يې يو لوی تاريخي واټن تر شا کړی دی. په تاريخ کې داسې ډېرې بېلګې لرو چې د سړيو نومونه د ځايونو نومونه بيا بيا له يوه نسل نه بل ته را پاتې او تکرار شوي دي.

## معياري ژبه

ترڅو چې ژبه يوازې د خبرواترو له لارې د وګړو تر منځ د معلوماتو د تبادلې وسيله وي، د هرې سيمې، لا د هرکلي، وګړي کولای شي چې ځينې ژبنۍ ځانګړتياوې ولري. خو کله چې ژبه د يوه هيواد ، يا د يوې پراخې جغرافيايي ساحې په سطحه، د فرهنګي هستونو د منځ ته راوړلو او خپرولو وسيله شي نو بيا دې ته اړتيا پيدا کېږي چې ژبه د امکان تر حده، په خپله محوطه کې، د ژبنيو قانونو په چوکاټ کې سره يوه شي يانې چې د ژبې هر ويونکی، په هر ځای کې چې وي، د يو راز ژبدودي او املايي اصولو پر بنسټ ليکل وکړي. تر څو چې په يوه ژبه کې دغه يو والی را پيدا نه شي، نو هغه ژبه که هرڅو مره غني فرهنګ هم ولري، د نړۍ د ولسونو په کچه فرهنګي ژبه نه شي ګڼل کېدای. پښتو هم له دغه قانونه ځان نه شي خلاصولای.

د تاريخ په اوږدو کې چې هرکله سياسي او ټولنيزو شرايطو دا غوښتنه کړې چې پښتانه سره يو شي، د يو ډول معياري ژبې د ايجاد د پاره هلې ځلې شوې دي. نېژدې څلورنيم سوه کاله پخوا پير روښان هڅه وکړه چې د پښتنو د پاره يو معياري ليکدود ايجاد کړي خو د هغه په وړاندې بيا اخون درويزه، او د پير بابا نورو پيروانو، د سياسي مخالفت تر څنګه د ژبې او ادب په ډګر کې هم بله لار و نيوله او د پښتو د املايي يو والي مخې ته خنډ شول. خوشال خان خټک هم پښتو املايي اړخ ته پام وکړ او د "زنځيرۍ" په نامه اثر يې دې موضوع ته وقف کړ خو د هغه هڅې هم د هغه په کورنۍ پورې محدودې پاتې شوې. د غازي امان الله د پاچاهۍ په دوران کې د پښتو ژبې د پراختيا او ځواکمنتيا د پاره "مرکه د پښتو" جوړه شوه چې د پښتو ليکلو په لار کې يې څه کار وکړ خو دغه ريفورم هم د هغه مترقي ټولواک د نورو اصلاحاتو په څېر د پرمختګ د ښمنانو او د افغانستان غليمانو د خاورو سره خاورې کړ. د رواني هجري پېړۍ په شلمو کلونو کې د پښتو د معياري کېدلو د پاره بيا هڅې پيل شوې او د امکاناتو د نشتوالي سره سره په دې لار کې د قدر وړ ګامونه واخيستل شول. د پاکستان د جوړېدلو سره سم يو وار بيا د پښتو د معياري کېدو په وړاندې د مقاومت لړۍ پيل شوه، پاکستاني چارواکو هڅه وکړه چې د کرښې اخوا پښتو ليکدود د اردو ليکدود تابع کړي.
که څه هم دغه پروژه بريالۍ نه شوه خو بيا هم په کوزه او بره پښتونخوا کې دوه نسبتاً نا متجانس ليکدودونه چلېدل او ښکېنيو ليکوالو د پښتو د معياري کېدو چندان خيال و نه ساته. د پښتو ټولنې تر چتر لاندې پښتنو منورينو څو وارې د پښتو د املايي يو والي په موخه سره غونډې وکړې خو چندان نتيجه يې تر ګوتو نه کړه. په وروستي ځل، کله چې په افغانستان کې د جنګونو له امله افغان ليکوال له دولتي چوکاټه ووتل او د مهاجرت په شرايطو کې يې د کوزې پښتونخوا

د ليکوالو سره له نېژدې، مخامخ اړيکې پيدا کړې نو يو ځل بيا د پښتو د معياري کېدو هڅې را ژوندۍ شوې. د کمپيوټر پرمختګ هم د پښتو د املايي يو والي په لار کې ډېر مثبت نقش ولوباوه. د افغانستان د جنګ په وروستيو کلونو کې دا هيله پيدا شوه چې دا ځل به د پښتو د معياري کېدلو هلې ځلې بريالۍ وي

له بده مرغه په دې وروستيو څو کلونو کې د ځينو تنګ نظريو په وجه بيا دا خطر را پيدا شوی دی چې د معياري کېدلو دغه بهير به يو وار بيا هم ټکنی شي. دا ځل ګواښ د پښتو د دښمنانو له لوري نه دی، د پښتو د مينه والو له لوري دی. د افغانستان په ګوټ ګوټ کې ليکوال او فرهنګيان د معياري پښتو د ليکلو هڅې کوي خو ځينې کسانو د دغه تاريخي خوزښت په وړاندې د مقاومت جنډې را پورته کړې دي.

پښتانه وايي د چونګښو من نه جوړېږي. زمونږ په هېواد کې هم د مرکزيت نه د تېښتې احساس تر دې حده قوي دی چې هماغه خوله چې نور د تجزيه طلبۍ په تور تکفيروي، په خپله بيا د لوېې پکتيا، لوی ننګرهار او لوی کندهار په نامه په کور کې کورګي جوړوي.

هماغه خلک چې له نورو سره د پښتو د دفاع په نامه هر ډول جنجال ته تيار دي ، بې له کومې ترهې بيا د سيمه ايزو تمايلاتو د پاللو د پاره د پښتو ژبې د معياري کېدو له بهير سره داسې وران دي چې خدای دې ترې ساته.

له معياره د تېښتې له پاره درې علتونه شته:

- لومړی دا چې څوک د ژبې د معياري کېدلو په اهميت نه پوهېږي؛
- دوهم دا چې که د معيار په اهميت پوه هم شي، پر ځان يې دومره خواري نه لورېږي چې معياري اصول زده کړي او ځان پرې عيار کړي؛
- دريم دا چې سړی د ځينو سياسي او ايډيالوژيکي ملحوظاتو پر بنسټ يا خو معيار ته د سره غاړه نه ږدي او يا يې تر هغو نه مني چې په خپله يې د اداره کولو ځواک نه وي موندلی.

اوس نو که څوک غواړي چې پښتو په واقعي مانا يوه فرهنګي ژبه شي، که څوک غواړي چې نړۍوال او د هېواد نور وګړي پښتو زده کړي، که څوک غواړي چې د پښتنو ادب او فرهنګ نړۍ والو ته ورسوي دا به ضرور مني چې په سر کې بايد پښتو معياري ژبه شي. هغه څوک چې د معيار په اهميت نه پوهېږي هغوی ته بايد په دې اړه مالومات ورکړي ، هغه څوک چې د فکري لټۍ له امله په ځان خواري نه مني هغوی بايد تشويق کړي او هغه کسان چې کستن

**خنډونه جوړوي د هغوی سره باید مجادله وکړي.**

-

د هېواد په ګوټ ګوټ کې باید فرهنګیان د خپلې ژبې د راتلونکې په هکله فکروکړي او هر څوک د خپل ځان سره فیصله وکړي چې ژبه یې تر کومه حده فرهنګي شي. که چېرې فیصله په دې شوه چې زمونږ ژبه باید فرهنګي راتلونکې ولري نو بیا د ژبې له معیاري کېدو رغېدن نه شته. که پکتیاوال د "شپون" پرځای "شپین" ولیکي، که لوګری د "چې" پر ځای "څې" و لیکي، که ننګرهاری د "لمر" پر ځای "نور" ولیکي، که پېښوری د "ښتن" پر ځای "سختن" و لیکي یا کندهاری د "شوم" پر ځای "سوم" ولیکي په دې کار به یې د پکتیا، لوګر، ننګرهار، پېښور یا کندهار وګړو ته څومره ګټه رسولې وي او د پښتو معیاري کېدلو ته به یې څومره تاوان رسولی وي؟

هر څوک چې قلم پورته کوي او غواړي چې په پښتو ژبه لیکل وکړي، تر هر څه لومړی باید دې پوښتنې ته ځواب ووایي چې دا کار یې تر کومه ځایه د ژبې او ولس په ګټه دی؟ بیا چې هر څه کوي اختیار یې خپل دی

## پښتون –افغان:تاریخی سابقه اوریښه

په لرغونو شرقی آثارو کې (پښتون) معمولاً (دافغان) په نامه یاد شوی دی، خو یو شمېر غربی پوهان په دې عقېده دي چې دپښتون دکلمې سابقه تر افغان نه اوږده ده. او څه باندی ثلور سوه کاله پخواله میلاده دیونان ستر مؤرخ هېر دوتس (۴۲۲-۴۸۲ق م) په خپل تاریخ کې پښتانه دپختویس یا پکتویس په بڼه ذکر کړي دي. دغه راز دوی وایی چې دپښتنو دملک یا پښتونخوا نوم هم همدومره زوړ دی او هېر دوتس په خپل همدې اثر کې دپکتیکا یا پکتویک په شکل یاد کړی دی. ددې پوهانو استناد ، اکثره دهیردوتس دتاریخ پدالاندې عباراتو شوی دی:

(داریوش دوه تنه ددې خبرې دمعلومولو دپاره وګومارل چې اباسیند چېرته په سمندر ور ګډېږی.دغو دوو تنو خپل کار دکسپتیروس له ښاره او دپکتیکاله هېواده شروع کړ) (۱)

(نور هندیان هم شته چې دکسپتیروس له ښار او دپکتیکا له هېواد سره ګډ سرحد لري، [او] دنورو هندیانو شمال ته میشته دي.) (۲)

پختویس پوستینونه اغوستي وو او وطني لېندۍ او توري یې ګرځولې ( ۳) هنري بیلو ، هنری لوونتال، اولاف کرو ، او دلنګوسټک سروې آف انډیا مولف جورج ګریرسن دهېردوتس په پورته عباراتو کې د (پکتیکا ) او (پختویس) الفاظ په ترتیب دننني پښتونخوا او پښتون دکلمو معادل ګڼي (۴).

جورج ګریرسن دپښتون کلمه دآریایانو دزاړه کتاب، ریګوېدا ، دپکتاس له کلمې سره هم مقایسه کوي او لیکی چې دا دوه کلمې په ډېر غالب ګومان سره یو شی دي. (۵)

همدا پوهان دهیردوتس(اباروتی) له پښتنو (اپرېدو ) سره یو شی ګڼي ( ۲) او معروف نارویژن ژبپو مارګنسټرن،هم وایي چې په صوتي لحاظ دا ممکنه ده چې(اپاروتي) او (اپریدی) سره یو شی وي (۷).

کرو لکه یو شمېر نورو پوهانو غوندې کسپتوروس یاکسپتیروس، چې دهېردوتس په پورته عباراتو کې دپکتیکا له هېواد سره یو ځای دیو ښار په توګه یاد شوی دی، له ښایسته اوږده بحث نه وروسته پېښور بولي او دا ددې خبرې یو بل دلیل ګڼی چې دهېردوتس پکتویک یا پکتیکا هرو مرو پښتونخوا ده. (۸).

ځيني پوهان، لکه مارګنستېرن بيا دا نظريه ردوي چې دهيردوتس (پکتويس) ننۍ پښتون دی. دی ليکی: (لېسن او له هغه نه را وروسته نورو [پوهانو] پښتون دهيردوتس پکتويس بللی دی او دا فريدو نوم يې د [هير دوتس] له اپاروتي سره معادل ګڼلی دی....دا وروستۍ خبره کيدی شي چې رښتيا وي، خو په هيڅ صورت يقيني نه ده. مګر لومړۍ خبره بايد په فونالوجيکی او نورو دلايلو رد شي. (۹)

( موږ د مارګنستېرن ددې خبرې او ځينو نورو کمزورو تذکراتو په باره کې دهمدې فصل په پای کې يوه يادونه کې په يو څه تفصيل غږيدلی يو او د پښتنو دتاريخي مطالعې دځينو ټکو دپوره وضاحت په خاطر په دې ارزې چې لوستونکی يې يو وار له نظره تېر کړي).

کوم مطالب چې تردې ځايه په ډېر لنډ ډول يادشول، له هغو نه دا څرګنده شوه چې يو شمېر څېړونکی او معروف پوهان هېردوتس دپکتويک او پکتويس الفاظ له پښتونخوا او پښتون سره يو شی بولي او وايی چې دا دوه نومونه تخمين دوه زره کاله پخوا په لرغونو يوناني آثارو کې يادشوي دي.

اما د (افغان) دلفظ په باره کې ديو شمېر محققينو عقيده داده چې دا کلمه تر ټولو دمخه دايران دنقش رستم په هغې کتيبې کې راغلې ده چې په درې يمه ميلادي پېړۍ کې دساسانيانو ديوه واکدار، لومړي شاه پور، په هدايت په پارتی او يونانی ژبو ليکل شوې ده.

(شپرنګ لن) په خپل هغه مفصل مضمون کې چې عنوان يې لومړنی ستر شاهپور دزردشت پر کعبه باندې دی، ددغې کتيبې دتشريحاتو په ضمن کې يو ځای ليکي چې دی ددې کتيبې د (ابګان) يا (اوګان) کلمې ته دمعاصر (افغان) له نامه نه بهتر معادل لفظ نه شی پيدا کولی. (۱۰)

اولاف کرو وايی ددې دوو کلمو دارتباط ملاتړ دا حقيقت هم کوي چې دشاهنشاه شاهپور ډېر ملازمان هرو مرو هغه خلک وو چې دايران ختيځ ته پرتو سيمونه يې استخدام کړی وو. کرو همدغه راز وايی چې دساسانيانو يو امپراتور، دريم شاهپور، هم د( اپاکان) په نامه چې (ابګان) ته ببخی ورته کلمه ده، يادشوی ؤ. کرو په پای کې وايی په (افغان) باندې د(ابګان) او (اپاګان) بدلېدل يو عادي امر دی او دا ټکی سړی دې ته رابولی چې ددرنو افغانانو اسلاف په همدا ساسانيانو او دهغوی په مسرانو کې ولټوي. (۱۱)

مګر ځينې نور محققين لکه ورتن ګريګورين بيا دنقش رستم د ( ابګان) او (افغان) دکلمو ارتباط

او یو والی ته د شک په نظر ګوري او وایي چې سړی باید د دغو کلمو په لفظي ورته والی باندې ونه غولیږي. ځکه دی وایي د پنځمې میلادی پېړۍ په پرله پسې ډول همې ته ورته نومونو باندې یاد شوي دي. (۱۲)

اما باید وویل شي چې که د نقش رستم کتیبه ګې د (ابګان) کلمه ارمنیانو ته راجع وي نو باید چې د (الوان) یا (اغوا) په شکل ثبت شوي وي نه دا چې د (ابګان) یا (اوګان) په شکل. ځکه کوم غربي مؤلفین لکه کروسنسکی، بیلو او نور چې د افغانانو او ارمنیانو په قومي ارتباط ډېر پخوا غږېدلي دي هغوی دا سې ښیي چې په لومړي سرکې ارمنیان د (البان) په نامه یادېدل. خو وروسته دا کلمه په (اغبان) یا (اغوان) بدله شوه.

کروسنسکی پدې ارتباط لیکي: (اغوانان اصلاً د شېروان [اویا هغه] ولایت وو چې په قدیم کې دستري البانیا په نامه یادېده...... [د اغوانانو] نوم خپله ددې ښکارندوی دی چې دوی اصلاً د البانیا دي. ځکه په البانی ژبه کې زموږ د لام توری د (غ) په توري بدلېږي. او زموږ (ب) د (و) په کانسو ننټ بدلېږي او پدې ډول د البان له کلمې نه اغوان جوړ شوی دی. ) (۱۳)

بیلو هم دا خبره کوي او وایي د (اغوان) نوم اصلاً لرغونو رومیانو په ارمنیانو ایښی دی. دی وایي څرنګه چې ارمنیان د قفقاز په غزنۍ سیمه کې اوسېدل او په لاتیني کې (غره) ته (البه) ویل کېږی نو رومیانو د ارمنیانو وطن د (البانیا) یعنی غرنی ملک په نامه یاد کړ او خپله ارمنیان یې (البان) یا (الوان) یعنی د غرني ملک اوسېدونکی وبلل. بیلو وایي چې همدغه (البان) بیا په (اغوان) بدل شو. (۱۴)

نو که د نقش رستم د ابګان کلمه د آذربایجان لرغونو اوسېدونکو ته راجع وي باید چې دا البان، اغبان یا هغوان په بڼه لیکل شوې وي نه دا چې د اګان یا اوګان په بڼه.

ځینې وتلي پوهان د جورج مارګنتېرن په شمول، بیا پدې عقیده دي چې د (افغان) نوم د لومړی ځل د پاره یوه لرغوني هندي منجم (وراهه میهیرا) د (اوګانه) په شکل ذکر کړی دی. (۱۵)

دا منجم په خپل هغه اثر کې چې د شپږمې میلادي پېړۍ په اوایلو کې یې تألیف کړی او (براټ- سنهیتا) نومېږي، یو ځای لیکي:

(دا لاندې د لکۍ لرونکي ستوري په قلمرو کې شامل دی: غرني سنګرونه، پهلویان، څویتان، هونان، کولان، افغانان....او غیر عادل او جاه طلبه خلک. ) (۱۲)

(دلته دا خبره دیادونې وړده چې (اچ. کرن) چې (براټ-سنهیتا) یې ان په کال ۱۸۲۹ کې په انګریزی ترجمه کړې ده، د(اوګانه) لفظ د (افغان) په شکل لیکی دی او دادې معنا لري چې کرن بېخی متیقن ؤ چې دوراهه میهیرا داوګانه لفظ او دافغان نوم بېخې سره یو شی دي.)

جورج ګریرسن هم وایی چې دوراهه میهیرا داوګانه لفظ په زیاتره اطمینان دافغان له کلمې سره یو شی ګڼل شوی دي. (۱۷) ځینې غربی محققین وایی چې یوه چینی زائر هم دخپل هغه سفر په خاطراتو کې د(افغان) یادونه کړې چې داومی میلادی پېړۍ په اوله نیمایی کې یې کړی دی.

اګزانډر کننګهم دهند لرغونې جغرافیه کې (داوپوکین یا افغان) تر عنوان لاندې لیکی: (چینی زائر هون څانګ او-پو-کین یوازې یو ځل په یوه لنډ عبارت کې ذکر کړی او دهغه موقعیت یې دفلنه [بنو] او غزنی تر منځ دبنو شمال غرب او د غزنی جنوب غرب ته ښودلی دی.) (۱۸)

کننګهم لږ وروسته بیا لیکی: (زه تقریباً متیقن یم چې دهون څانګ داپوکین مطلب هرو مرو افغان دی. داو-پو-کین کټ مټ معادل به اوګان وي. ځکه دچینی ژبې په سېلابونو کې دافغان لفظ تردې نه په زیاتر صراحت نه شی ادا کېدلی.....اوکه خبره داسې وی نو داتر کومه حده چې ماته معلومه ده، دافغانانو تر ټولو نه قدیم ذکر دی.) (۱۹)

د کننګهم له یادونو نه وچته ښکاری چې ده ته دانه ده معلومه چې په (براټ-سنهیتا) کې هم داوګانه کلمه راغلې ده. اما کوم معادل لفظ چې دچینی ژبې د (اپوکین) دپاره ښیی هغه د (براټ-سنهیتا) له اوګانه سره تقریباً بیخي مطابقت لري.

د کننګهم له خبرونه داهم ښکارې چې هون څانګ داو-پو-کین یا افغانه کلمه دهغې په لغوی مفهوم دافغانانو د ملک په معنا استعمال کړې ده او باید وویل شی چې داکار ډېر راوروسته هم وی دی.

ازرقی هروی دپنځمې هجری پېړۍ داولې نیمایی شاعر او دسلجوقیانو دکورنۍ مداح په هغې قصیده کې چې دآلپ ارسلان محمد سلجوقی دزوری، طغانشاه (مرګ: ۳۲۵ هجری) په ستاینه کې یې لیکلې ده وایی:

زهری ګرسوی افغان شوی ای باد شمال

باز ګویی زهری پیش ملک صورت حال (۲۰)

دا چې د(افغان) لفظ په لرغونو غیر اسلامی آثارو کې څه وخت او په شکل راغلی دی، پدې باره کې قاطع او یقینی حکم ، یو څه احتیاط غواړي. خو په اسلامی آثارو کې دانوم ان له قدیم نه په ښخی صریح او متواتر ډول همدا دافغان په بڼه ثبت وی دی.

څرنګه چې ددې لیکنې په څلورم فصل کې راغلي دي، دافغان نوم لږ تر لږه زر کاله پخوا په همدا ننني شکل په حدودالعالم کې ذکر وی او وروسته له هغه نه اسلامی مؤلفینو په پرله پسې ډول یاد کړی دی. اما د پښتون لفظ په اسلامی آثارو کې ډېر وروسته ثبت شوی دی.

ترکومه حده چې ماته معلومه ده دا اسلامی دورې پخوانی معلم اثر چې د پښتون کلمه بیا بیا پکې راغلې ده، هغه دا خوند درویزه مخزن الاسلام دی چې د ۱۲۰۳ او ۱۲۱۲ میلادي کلونو تر منځ لیکل شوی دی. اخوند درویزه یو ځای کله چې د روښان پېر دزوی، جلاالدین په باره کې غږېږي لیکي:

( دغه لا په یې په خوله کړه چې پادشاه د پښتنو یم ، پښتنو لره به ښه کړم ، پښتانه را پسې ځئ........ پښتنو ټولی پرې وکړ... پښتون درست پده زبون شه... مغا ګډ په پښتانه شو. د جلال له بده پېله ګل پښتون مغل په دار کړ. ) (۲۱ )

مخزن په پښتو لیکل شوی دی او یقین ته نژدې ګومان دادی چې که د پښتنو په باره کې له مخزن نه وړاندې لیکل شوي آثارو په پښتو وي، نو د پښتون کلمه به په هغو کې هم راغلې وي. ځکه خپله پښتانه ځانونه پښتانه بولی. خو خبره داده چې کوم اسلامی آثار چې په نورو ژبو لیکل شوي دي، په هغو کې پښتانه له ډېر قدیم نه (افغانان) بلل شوي دي او په پخوانو اسلامی آثارو کې یې ملک هم، لکه څنګه چې ددې لیکنې په اتم فصل کې په تفصیل خبرې پرې شوي دي، د (کشور افغانی) ، (مرزافغان) (حدافغان) او (افغانستان) په نامه یاد شوی دی.

البته تاریخی شواهد داسې ښیی چې د (افغانستان) غیرپښتانه او سېدونکی هم له ډېر پخوانه دغه ګډ کور ته منسوب او د (افغانانو ) په نامه یاد شوي دي.

ځینو مؤرخینو لکه محمود کتبی ، برهانالدین میرخواند ، عبدالزاق سمرقندی او نورو ، لکه څنګه چې ددې لیکنې په اول فصل کې خبرې پرې شوې دي د څورلسمې او پنځلسمې میلادی پېړۍ د(افغانستان) ترکان او مغل هم بیا بیا افغانی مغل او افغانی ترکان بللی او هزارګان یې هم په مکرر ډول د (افغانی هزاره) په نامه یاد کړي دي.

د سیفی هروی د هرات د تاریخنامې (تالیف ۷۲۱-۷۱۸ هجری) له ځینو عباراتو او بیانابو نه داسې

ښکاري چې د څورلسمې میلادي پېړۍ په اوله نیمایی کې هم د هغه وخت د (افغانستان) غیر پښتانه او سېدونکی (افغانان) بلل شوي دي. مثلاً کله چې سیفی د خپل وخت د (افغانستان) د پېښو په باره کې غږېږي د دغه ملک کردان په صراحت د افغانانو جزبولی. دی یو ځای د هغه وخت د (افغانستان) دواکدار ، ملک (شاهنشاه) ، له خولې لیکی:

(.......افغانان سخت بې پروا ، غله، خونی، فتنه انګیز او مېړني خلک دي، په تېره بیا داکدان چې زما په خدمت کې دي او هر یو یې له رستم دستان او سام نریمان سره ډ غرې وهي او ورا پرزوی یې....... ) (۲۲)

په عمومی ډول پښتنو تل ځانونه پشتانه بللی دي او د افغانستان نورو او سېدونکو او بهرنیو خلکو اکثره د افغانانو په نامه یاد کړي دي. یوازې په پخوانی هند کې پښتانه د پټانانو په نامه هم یاد شوي او ځینو نورو خاجیانو هم کله کله د هندوستانیانو په تقلید پښتانه پټانان بللی دي.

خپله د پښتنو په اکثره فارسی لیکنو او حتی ډ زرو پښتو اشعارو کې هم پښتون افغان بلل شوی دی او یو شمېر لیکوالانو او شاعرانو لکه آخوند درویزه او خوحال خان خټک بیا پښتون او افغان د مترادفو الفاظو په توګه استعمال کړي دي.

د نو لسمې پېړۍ له؟؟یلو نه رادې خواته اکثره غربی لیکوالو او مستشرقینو د(افغان) کلمه په خاصه او قومی معنا د (پښتون) مترادفه بللې ده خو په علمه او سیاسی معنا یې په مکرر او متواتر ډول د افغانستان د اتباعو په مفهوم کړې ده او پدې ډول یې د افغانستان ټول او سېدونکی، لکه څنګه چې ښایی ، افغانان بللي دي.

د افغانستان په سیاسی او فرهنګی حلقو کې هم له ډېر وخت نه رادې خواته د افغان لفظ د افغانستان د او سېدونکی او تبعه په مفهوم استعمال وی دی او پدې وروستیو وختو کې یې دا مفهوم بېخی د عام ذهنیت جزګرځېدلی دی.

یوه ضروری یادونه:

مارګنسټرن د اسلامی دایرة المعارف په همدې مضمون کې ځینې ښکاره سهوې هم کړې او ددې خبرې عمده دلیل هم دوه شیه ښکاري.یو دا چې دده د مضمون د اصلی نسخې دلیکنې په وخت کې هغه پخواني اسلامي تحریري اسناد چې د پښتنو په تاریخې موجودیت او اجتماعی حالت نسبی رڼا اچولی شی دومره نه وو راسپړل شوي. بل دا چې خپله د مارګنسټرن تبحر هم په ژبنیو مطالعاتو

کې و او د سیمې د تاریخی مطالعاتو او زړو متونو په ساحه کې یې ډېر کارنه وکړی.ځکه نو دا څه عجبه نه ده چې هغه په همدې ځای کې یوه ښکاره اشتباه هم کوی او لیکی چې غزنوي سلطان محمود (په یوه بله موقع کې په پښتنو ؟؟؟وکړ او سزایې ورکړه او دا خبره بیهقی پهه ډاګه کړې ده) (اسلامی دایرةالمعارف، ټوک ۱، مخ ۲۱۷) خو حقیقت دادي چې بیهقي په پښتنو باندې د سلطان محمود د حملو په باره کې یوه کلمه هم نه ده ویلې. البته دغزنویانو دعصر یو بل معروف مورخ عبتي، لکه څنګه چې ددې لیکنې په څلورم فصل کې په یوڅه تفصیل خبرې پرې وی دي. په پښتنو دمحمود دیرغل یادونه کړی ده.

مارګنسترن په همدې لیکنه کې داهم وایی چې دابدالو اصل او نسب مجهول دی، خو دغلځو په باره کې دا امکان شته چې دنامه دتسمیې وجهه یې یو عامیانه روایت وي. (اسلامی دایرةالمعارف، ، ټوک۱، مخ ۲۱۷ ) که څوک دابدالو داصل او نسب په باره کې پداسې افسانه پسې ګرځی، لکه دغلجو دنامه په باره کې چې جوړه شوې ده، نور خبروته هېڅ ځای نه پاتې کېږی. ځکه چې په علمی مطالعاتو کې دغه راز یو بې بنیاده روایت نه دیوې تاریخی حادثې د ، رد دلیل کېدلی شی اونه یې دائید او نه په بحث ارزی. خو څرنګه چې مارګنسترن یو لوی عالم ؤ او الاف کرو هم ددرانو په باره کې همدا خبره کوي، نو باید هرومرو څه پرې وویل شي.

اولاف کرو هم وایي چې (ددرانو اصل او نسب مجهول دی او سترشاه عباس تر وخته پورې [دتاریخ] له تیارونه ، نه وو راوتی ) (دي پټانز، مخ-۹).

دلته ، لکه نورو غوندې دکرو استناد هم پدې خبره چې بابر په بابرنامه کې داکثره هغو سیمو دپښتنو قبایلو او قومونو نومونه اخیستی چې یرغلونه یې پرې کړي خو دابدالو نوم یې سره له دې چې کندهار یې نیولی دی، نه دی اخیستی. ( دي پټانز، مخ ۱۵۲-۱۵۵ )

باید وویل شی چې په کندهار باندې دبابر دحملې او دکندهار دښار دنیولو په وخت کې دکندهار واکداران دوه تنه مغولی ورونه شاه شجاع ارون، چې بابر یې شاه بېګ بولي او دهغه کشر ورور محمد مقیم دی. ځکه نو دبابر زیاتره یادونې دهمدې ورونو او دهغوی دمغلو حواریونو او نوکرانو او افسرانو په باره کې دي او دکندهار له پښتنو سره یې نه کوم ټکر کړی اونه په کوم بل لحاظ ددغې سیمې له پښتنو سره محشور شوی دی. ځکه نو بابر په کندهار کې نه یوازې ددرانو یادونه نه کوی ، بلکه بېخی دپښتون نوم نه اخلی. که بابر ددرانو پښتنو یادونه نه کوي داڅه عجیبه خبره نه ده.

بابر د نورو پښتنی اقوامو او مشرانو نومونه، معمولاً، هغه وخت اخیستی چې یاد خپلو عملیاتو او چور او چپاو په وخت کې ورسره مخامخ او یادکوم بل ضرورت پر بنا ورسره محشور شوی دی.

علاوه پردې که په بابر نامه کې دابدالو نوم نه دی راغلی نو په آئین کبري کې خو چې له بابر نامې نه یو څو لسیزې وروسته لیکل وی او دهند دمغولو دعصر یو تر ټولو نه پخوانی او ډېر مستند اثر دی، په واضح ډول ذکر شوی دی.

کله چې ابوالفضل دکندهار په شرقی مضافاتو غړېږې دوه واری (ابدالي قبیله ) یادوي او هغه مالیه ښیی چې ان دصفویانو ددولت په اول سرکې اویا خپله دمؤلف په قول دقزلباشانو په وخت کې پرې وضع وې وه. (ابوالفضل ، آئین اکبری، ټوک۲ ،مخ ۴۰۳ )

علاوه پردې کله که په پښتنی قبایلو باندې دنسب دشجرې په اساس بحث کېږي، هلته نو بیا دا خبره چې ددرانو اصل او نسب مبهم دی، په یوه بل دلیل هم بې ځایه ښکاري. دنسب دشجرې په اساس ابدالیان دترینو یوه ښنه ده او ترین هغه پښتني قبیله ده چې له بابر نه ډېر وړاندې په تحریري اسنادو کې یاده شوې ده. له دغو اسنادو نه یوه هغه کتیبه ده چې نقل یې ماته لوی محقق عبدالحی حبیبی راکړی دی. دا کتیبه په څورلسمه میلادي پېړۍ کې دهغه یوه ماجت په دېوال لیکل شوې ده چې دغازی خان دډېرې په (بارکهان ) کې واقع دی. کتیبه په فارسی لیکل شوې او پښتو ترجمه یې داده:

( دادملک پویاتور ترین موسیانی خیل مسجد دفیروز شاه په عهد کې په سنه ۷۷ هجری کې ودان شو )

ددې ټولو خبرو په رڼا کې سړی ویلی شي چې ددرانو تاریخی هویت دومره په تیاره کې نه دی پټ، لکه ماګنسټرن او کرو چې وایی.

مارګنسټرن په اسلامی دایرة المعارف کې یوه بله مغشوشه خبره هم کوي او وایی دانه ده معلومه چې په پخوا زمانه کې افغانان دسلیمان له ره نه دغرب خواته څومره وړاندې خپاره وو ، خودی وایی په پخوانو آثارو کې هیڅ داسې څه نه دی ویل شوی چې له غزنی نه دغرب پلوته دې دپښتنو سکونت وښیي. (اسلامی دایرة المعارف، ټوک۱ ، مخ ۴۱۲ ) دمارګنسټرن دا خبره هم له هغه څه سره اړخ نه لګوي چې په تاریخی اسنادو کې راغلي دي. په څلورم فصل کې به وښودل شی چې ډېرو اسلامی آثارو په هغې ساحې کې چې له هرات نه دا باسیند تر غاړو پورې متداد لري، له قدیم نه ،

پښتانه میشته بللی او ددغې سیمې مختلفې برخې یې په یوه یا بل نامه دپښتنو دنفوس داکثریت او دسکونت دقدامت له امله همدوی ته منسوبې کړې دي. همدې آثارو ، لکه څنګه چې په اتم فصل کې مفصل بحث پرې شوی دی، دڅورلسمې پېړۍ په اوله نیمایی کې یوه لویه سیمه د (افغانستان) په نامه یاده کړې ده.

ددریم فصل یادداشتونه:

۱) لوونتال، ایسیدور ، دبنګال داسیایی ټولنې مجله، ټوک۲۹ ،مخ۳۳۱.

۲) همدا اثر ،همدا مخ

۳) همدا اثر همدا مخ.

۴) بیلو ، هنری، دافغانستان دقوم پېژندنې مطالعه ،مخ۲۰۴-۱۹۸ لوونتال ، دبنګال دآسیایی ټولنې مجله ، مخ۳۳۱ ګریرسن جورج ، دهند دژبو سروې، ټوک۱، مخ ۱۰۲ همدا اثر، ټوک۱۰ ،مخ ۵ کرو ، اولاف، دی پټانز مخ۴۱-۳۵.

۵ )ګریرسن، جورج، دهند دژبو سروې،ټوک۱۰ ،مخ۵.

۶) بیلو ، دافغانستان طوایف،مخ۷۷، ۱۹۷۲د قوم پېژندنې مطالعه، مخ۹۱-۸۹ دهند دژبو سروې ،ټوک۱ ،مخ۱۰۲ همدا اثر ټوک۱۰، مخ ۵ دی پټانز ، مخ ۳۷.

۷) مارګنستېرن، جورج،اسلامی دایرةالمعارف ، ټوک۱، مخ ۲۱۷.

۸) کرو ، دي پټانز، مخ ۳۳-۳۲.

۹ )مارګنستېرن، اسلامی دایرةالمعارف ، ټوک۱، مخ ۲۱۷.

۱۰) سپرنګ لنګ، ام، دامریک دسامی ژبو او ادبیاتو مجله،ټوک۱۰۷، مخ۴۱۲، کال۱۹۴۰.

۱۱) کرو ، دي پټانز ، مخ۸۰-۷۹.

ګریګورین، ورتن، دمعاصر افغانستان ظهور ، د مخ۲۹ حاشیه.

۱۳) دوسغ سیو ، دفارس دانقلابونو تاریخ ، ټوک۱ ، مخ ۱۳۹-۱۳۷.

۱۴) بیلو ، دافغانستان دقوم پېژندنې مطالعه، مخ۲۰۵.

۱۵) اسلامی دایرةالمعارف، ټوک۱ ، مخ ۲۱۷.

۱۶) وراهه میهیرا ، دي برات-سنهیتا ،مخ۱۱۰،نمبر ۳۹-۳۸.

۱۷) دهند دژبو سروې ، ټوک۱۰،مخ۵.

۱۸) کننگهم،جورج،دلرغونی هند جغرافیه،مخ،۱۰.

۱۹) همدا اثر ، مخ ۱۰۳.

۲۰) هروی ، ارزقی، دیوان،مخ۵۱.

۲۱) درویزه،اخوند ، مخزن الاسلام،مخ۱۳۵.

۲۲) هروی،سیفی،دهرات تاریخ نامه، مخ ۱۹۹

## ٪25 وییرغاونه(Neologism) پښتو له پردي کېدو راژغوري

لومړی: اړینتیا او اړوندتیا

1 -وییرغاونه لکه د نورو دودیالو ژبو په څېر د کره لیکنې پښتو وییپانګې (لغوي ذخیرې( Vocabulary ) له څلورو برخو څخه یوه برخه(٪ 25 ) جوړوي چې نورې درې( ګړوودي- زړه- پردۍ ) هغه یې پروړاندې 75٪ کېږي. مانا دا چې یوازې ژوندۍ برخه په عادي ګړنې(ګفتاري) پښتو په بله وینا ، نالوستو پرګنو اړه لري او د پوهې او فرهنګ څانګوال او اړوند لیکوال، رسنوال یا ویناوال او ویاندان له څلورو اړو برخو سره.

2 - د وییپانګې څلورګونې وېش په دې مانا نه دی چې هرومرو دې هره برخه په تاله تللې 25٪ وي، بلکې موخه یې تر هرڅه له مخه د پورپانګې(مستعارې او دخیلې) هغې پر وړاندې د درې ګونې سوچه(ګړدودي- زړې- رغولې) 75٪ پانګې وړاندېینه او کارونه ده. په دې ډول دغه درې برخې سره په خپل منځ کې کمې زیاتې کېدای شي، د ساري په ډول په یوه شعر او بیا سپین و ازاد کې یوازې یا زیاته ګړدودي پانګه وکارول شي. په یوه رسنیز(ژورنالېستي) لیکنه کې د ګړدودي پانګې ترڅنګ رغولې او پورپانګه څه ناڅه یو برابر، په یوه فلسفي هغه کې ورسره زړه پانګه زیاته او په یوه پوهنیزه او بیا ساینسي لیکنه څېړنه کې خو لانبایي، پردۍ پانګه ترګردو درنه وخېژي او داسې نور.

3 - وییرغانونه د ژبپوهانو او بیا وییپوهانو Lexicologists ) ( له څانګیزو واکونو څخه ګڼل کېږي او په دې توګه پکې نور څوک په خپل سر او یوازې سر د لاسوهنې رښتنه نه لري. د بلې هرې پوهنیزې او فرهنګي څانګې والا هرګوره، خپلې اړوندې نومونې، په بله وینا ، نومونپوهنې(ترمینالوجۍ ) یوازې د یاد شویو پوهانو په ملتیا او لارښوونه، یا لږ تر لږه د اړوندو لارښودونو په رڼا کې رامنځته کولای شي.

4 - له ژبپوهنې یو شمېر ناخبر زده کړه وال، لیکوال او ان پوهان داسپسته رامخته کوي چې ژبه د((ولس مال)) دی او د ژبپوهانو څېړنې او بیانوې رغاونې پکې یوه بېځایه او ناروا لاسوهنه ده !

د دې ورانپوهاوي ځواب په دې متل کې نغښتی چې ((له ولسه زه راغلم، له نرخه ته خبر یې !)). که ژبپوه د ولس له نرخ((ژبې)) خبر نه وي، اساسي قانون
((ګرامر)) به یې څنګه جوړ کاندې، هغه لکه قانونساز خپل اومه توکي له ولسه را اخلي. د همدغه قانون په رڼا کې بیا یوه یوازېنۍ کره لیکنۍ بڼه ورتاکي او د څلورګونې وییپانګې په

ترځ کې یې **25**٪ وییرغاونه.

ژبپوه پوره پوهېږي چې د ژبې کومه برخه په ولس اړه لري او کومه په لیکنۍ برخه. له دې سره دا هم غوټه ده چې دغه ټاکلې سلنه یې ژبه له یو مخیز ژبني- فرهنګي یرغله او ورکاوي ورژغوري. ځکه د پوهې او فرهنګ پوړ(قشر ) ترې نه رغېږي او سل په سل کې له هو بهو را اخېستنې سره خپله ژبه ورو ورو له خپلې ټولنې او ولسه پردۍ کوي !
**5**- که وییرغاونه و نه شي، داژمندويي یا تضمين څوک کولای شي چې پردي وییونه او نومونې(اصطلاحات ) دې په یوه ژبه او لیکدود پښتوته راولېږدول شي، د ټولنپوهنې پرځای به یو علم لاجتماع کاروي، بل به جامعه شناسي، دریيم به سوسیالوجي، څلورم به سوسیولوژي، پېنځم به سوسیولوګي... او بیا داګرنتې چې خپلسرې رغاونې به نه کېږي او هغه هم ځو ځو ډوله، لکه د ازادیپال پرځای: حریت پسند او ازادي خوښوونکی ؛ د بنسټپال پر ځای: انتهاپسند او افراط خوښوونکی؛ د اروا پوهنې یا ساپوهنې پرځای: نفسیات او روح پېژندنه(پېژندنه د پارسي –شناسی ټکي پرټکي اړونه ده، کره پښتو انډول یې- پوهنه راځي ) او داسې نور ژبنی انارشېزم !
**6**- داسمه ده چې د نورو دودیالو ژبو په څېر پښتو نیولوجېزم د پېړیو په پوړیو کې د بېلابېلو شاعرانو او لیکوالو له خوا ترسره شوی او لومړی ځل یې امیر شېرعلیخان( **1868**ز. ) له پوځي- اداري نومونپوهنې(ترمینالوجۍ ) سره ټولیزه(سرکاري ) بڼه ورکړې او له اماني او بیا نادري- ظاهري پېر را هیسې ورته د پښتومرکې او پښتو ټولنې په چوکاټ کې څه ناڅه ډېر کار شوی دی.
هرګوره، د رغول شویو وییونو هماغه برخه لیکنۍ او څه ناڅه ګړنۍ پښتو ته لار موندلې چې د برابرۍ له مخې یې له اوسنیو ژبپوهنیزو آرونو سره لږو ډېر سمون درلودلی دی، خو ډېری یې د خپلو او پردیو د ټوکو او ملنډو لوبځي ګرځېدلي دی،لکه: سترتوب(ریاست )، ټوپنۍ (نړۍ )، ټوپن څرګند (شهرهٔ افاق )، پاس پاس (اسمان، هسک )... او لنډاندو پښتنو او دښنو یې په پېښو لا بترې رامنځته کړې دي، لکه واخلې: خوږې وږې کږې (ځلوبۍ )، ږغ ډبلی(رادیو )، شرنګ سوټی(رباب )، د رڼا کځوړه(د برېښنا څراغ یا ګروپ ).... **7**- په ټوله مانا یو پرله غښتی علمي= تخنیکي پښتو نیولوجېزم په کابل پوهنتون کې زموږ د ((یوې یو ازېنې= کره لیکنی پښتو ) ) غورځنګ له منځته پیلامې( **1972** ) سره رانښلول کېږي. په دغه څلوېښت کلن مهالپېر کې د بېلا بېلو پوهنیزو او فرهنګي ځانګو زرګونه نومونې(اصطلاحات ) رغول شوي او تر اوسه یې زیاته برخه دود شوې او پاتې هغه یې هم پرله پسې دود مومي.

**8**-له هغو ښاغلو او اغلو سره چې د ځانساتي(محافظه کارانه) ، زوړپالنې، ناپوهې، ناګارې، يا بلې هرې سايکالوجيکې لوښې خصلت له مخې د بل هر راز بدلون او نوي کېدون غوندې نوې وييرغانه( نيولوجېزم) د ژبپوهنيز او ړيوال د ټولمنلي دود برخلاف پر پښتو نه لوروي،دا چې يو بشپړ ډېرى ليکوال، شاعران، پوهان او رسنوال، په تېره ځوان انټرنېټي پښت زموږ د رغاونو تر ځنګه خپلې هم رامنځته کوي، دومره د اندېښنې وړ نه برېښي. دا زموږ د سيند کښونو(قاموس ليکونکو) پازه ده، په سيندونو او سيندګيو کې يې هغه برخه چې د اړوندو لارښودونو په رڼاکې يې ترسره کړې وي، را واخلو او پاتې نورې يې تر کرونې او سمونې تېرې کړو.

بيا هم پردې زيات ټينګار په کار دى چې د پوهې، فرهنګ او تخنيک په نننۍ نړۍ کې وييرغاونه د ځانګوښ او کاروښ د زرين آر له مخې له خپل نو مهالي علمي ځانګوال او ورسره ورسره ژبنې ځانګوال او لارښود پرته ترسره کول نه يوازې تاوان لري، بلکې د دودېدنې کابو يې هم کمه ده او ترمينالوجيکي او لېنګوېستيکي انارشېزم رامنځته کوي. پر دې سربېره ناسمې رغاونې ځانګوالو سيند(قاموس)کښونکيو(لېکزيکوګرافا نو ) ته د بيا سمونې او کرونې له پلوه يو بېځايه سرخوږى هم ور سرباري کوي.

**9**- خپلسرې رغاونې يو خوا ټکر( **accident** ) رامنځته کوي او بلخوا بيا ځلتيا يا تکرار(**duplication**). ټکر په دې مانا چې يوه رغاونه وار له مخه شوې او سمه ارزول شوې هم وي، له ناخبرۍ يا ناګارۍ څخه يې دويم او ان درېيم اندول يې هم رامنځته شي،لکه: پښويه(ګرامر) چې له څه له پاسه يوې پېړۍ راهيسې له راورټي او بېليو رانيولې تر صالح محمد کندهاري را اخېستې او کارولې ده، خو يو نيم اماتور ، سرور وکيلي څو کاله مخکې((ژبدود )) را اېستلى او زما خپل شاګرد محمد اغا شېرزاد همدا اوس اوس تر سرليک لاندې په يوه ليکنه کې((ګړدود )) کارولى دى.

د دې بېلګې هم کمې نه دي چې ډېر خپلسرې وييرغوونکي لا تر اوسه د((- **logy** )) زباد شوې پښتو اندول((-پوهنه)) د پارسي((-شناسی)) په پېښو پر ((-پېژندنه)) اړوي، لکه په ژبپېژندنه، ټولنپېژندنه، لرغونپېژندنه... کې او له دې سره يو ناکره دوپلېکېشن رامنځته کوي. په دې وروستيو کې چې افغان چارواکو له لسيزو لسيزو کره دود شوې((ښوونه او روزنه)) پر((پوهنه)) اړولې او د ښوونې(او ) روزنې وزارت د پوهنې وزارت اړولى، يوه بېځايه ديني رياکاري بلل کېږي، حال دا چې د لاتين( **education** ) عربي اندول ((تعليم و تربيه)) ده، پارسي ((آموزش و پرورش))... دى !

د ټکر(**accident**) ،لکه: ((کاليزه)) پر ((کليزه)) بدلول، حال دا چې کليزه نژدې يوه پېړۍ د

((تقویم ) ) لپاره رامنځته شوې چې له فونېتیکي دوی(قاعدې ) سره سمه یې پایله غورځول شوې او کالیزه لړترلړه له نیمې پېړۍ راهیسې بره خوا رامنځته شوې ده او کوزه خوایې ترې (الف ) غورځولی او یو شمېر برني یې هم نن سبا پېښې کوي !

**10**- له دین و دنیا ناخبره او لنډ اندي بنسټپال پښتو وییرغاونه د عربي ژبې او بیا اسلام په تاوان بولي. ان تردې چې د کفر ټاپې رالګوي. حال دا چې له قرآن او حدیث پرته نور عادي وییونه او ترمونه راپښتو کول نه ګناه ده او نه کفر ! لکه: جمهور رییس(هېواد مشر یایې ناکره: ولسمشر ) ، حاکم(ولسوال ) ، مدعی العمول(څارنوال ) ، د فوای عامې وزارت(د ټولګټو وزارت ) ، د عدلیې وزارت( د نیاو چارو وزارت ).... او د پوهنتنې وړ دا چې د بېلګې په توګه ورته د کوزې خوا انګرېزي (سکول ) ، هسپتال.. کفر نه ښکاري او د برې خوا (ښوونځی ) ، روغتون.. کفر ګڼي. له تورکیې نه تر ملیزیا او اندونیزیا چې لاتین ابېڅې(الفبې ) یې د عربي ځایناستې کړې او د خدای او پیغمبر سپېڅلې ویناوې هم ورسره لیکي او لولي. د امریکا**5-6** میلیونه بشپړ ډبری مسلمانان هرڅه په انګرېزي زده کوي او کاروي.

**11**- ځینې بیا له ګروهیزې لنډ اندۍ یا ناخبرۍ یو لړ ایټیمولوجیک زباد شوي آریایي او بیا پښتو وییونه عربي انګېري او له پښتو وینګ او لیکنګ سره یې نابانډې دي،لکه: پیل- فیل، پارسي- فارسي، توپان- طوفان، اپت- آفت، مانا-معنی یا معنا ، کمیس- قمیص، دوتر- دفتر... . فردوس له پردېس سره همریښه دی، خو دا چې یوه سپېڅلې نوم ونه ده ، په همدې عربي بڼه یې ساتل غوره بریښي. ((دین ) ) او((شعر ) ) بیا سامي او آریاني غبرګې ریښې لري، نو بیایې هم راخپلولو ته دومره اړتیا نشته او که پیدا شوه، د دویم وییي(ع) به پر اوږده(ې ) اړول کېږي.له وینګ و لیکنګ له مخې راپښتوشوي عربي پور وییونه، لکه امېل(حمائل)او مانااوښتي،لکه ماشوم(معصوم ) ، هرګوره، همداسې پاتې کېږي.
یو شمېر بیاد عربي پور وییونو پښتو وینګ او لیکنګ هم نه مني، لکه: وسه- وسع، شمه- شمع، منه- منع، تمه- طمع مسره- مصرع، کیسه- قصه.. لکه په تېره ماده کې چې یادونه وشوه، یوازې سپېڅلې نصوص(آیات و حدیث ) او ان اداري نومونې، لکه: (د دولت تر څنګ ) حکومت، قاضي، مفتي،... په کره لیکنۍ پښتو کې د پور وییبنو په توګه ساتل کېږي.

**12**- تروسې وسې لنډون، رواني، اساني او خوږ غږي(خوش آهنګي ) چې د کره لیکنۍ پښتو له آرونو څخه ګڼل کېږي(لیکلاربښود **20-21** ) ، په وییرغاونه کې هم اړین بریښي. زیاتره ناڅانګوال یا اماتور وییرغاوونکي، لکه بي بي سي والا زیاتره پارسي انډولونه ځانته مخبېلګه کوي او پښتو ته یې له ټکي پرټکي رااړونې سره پاسني آرونه تر پښو لاندې کوي،

لکه: پربرف- له واورې نه ډک(واورين) ، اشک آلود- له اوښکو ډک(اوښلن) ، اشک آور- اوښکې بهوونکی(اوښلن) ، ملتخواه یاملیگرا- ملت غوښتونکی (ولسپال) ؛ تر (تورپوستکی او توپوټکي) څخه ((تورپوست)) پېنځګوني آرونه را نغښتلای شي؛ روبه انکشاف- مخ پرودې (پرمختیایي) ، برسر اقتدار- د اقتدار پر سر (واکمن) ، ناسم پوهاوی(ورانپوهاوی) ، د منځ ټکی (منځټکی) ،د پایټکی(پایټکی) ، د پای بنه(پایبڼه) ، دکابل پوهنتون(کابل پوهنتون) او داسې نور غونډونه یا فرېزونه همداسې ترښت و ترکیب موندلای شي(همغه اخځ87-183).

همدارازیې ((برېښنالیک)) هم ((برېښلیک)) ته رالنډېدای او بیا گردانېدای شي: برېښلیکول، برېښلیکېدل، کټ مټ لکه: لاسلیکول، لاسلیکېدل، اغېز منېدل، ځواکمنول، ځواکمنېدل او داسې نور؛ انګرېزي هم له((الکترونیک)) څخه تش یو توری(e-) را اخېستی دی!

13- په وییرغاونه کې تر وسې وسې په کار ده، د یوه ترنګ(ترکیب) ټول رغنده توکونه پښتو اوسي، نه لکه: ملتپال- ولسپال، اقتصادپوهنه- وټپوهنه.. یا لکه د اروابناد دوکتور لودین(( لغت پوهنه)) یا کوزه خوا د شته(( نمر ګلي)) لپاره د ((نورپرست)) ګډوله رغاونه!

د(ګاډي، بېړۍ، الوتکې... د ساده اسان((سپرلي)) پرځای(مسافر- یا مساپر وړونکی)) د یو ځو لنډ اندو بي بي سي والاوو له ناکره رغاونو څخه شمېرل کېږي.

14- په هره رغاونه کې باید آر او رښتیني جاج، موخې او مانا ته وشي، نه داچې ټکي پر ټکي له بلې ژبې راوژباړل شي. ((کلونیالېزم)) عربو ((استعمار)) کړی او پاکستانیو((نوآبادیت)) ، مانا داچې نیولې خاورې ته عمران او ابادي راوړي، حال داچې هغه خاوره له بومي استوګنو سره په خپله ولکه کې راولي او رابښکېلوي يې، په همدې جاج موږ پر((ښکېلاک)) را اړولی او ورسره تړلی exploitation پر زبېښناک. خو عربو داهم په مثبته مانا(( استثمار)) کړی او پاکستانیو ((تحصیل)) چې ګوندې ثمر او حاصل ور په برخه کوي!

جمهوري یا جمهوریت او جمهور رییس زموږ رسنوالو په پاکستاني پېښنو

((ولسمشري)) او((ولسمشر)) کړي، خو څنګه چې لاتین آر انډول((ریپبلېک))
هغه پخوانۍ مانا((ولسواکي)) نوره له لاسه ورکړې اود اړتیاپروخت ورسره ((دېموکراتیک-)) ، سوشل او نور ستاینومونه ملګری کوي، نو پښتو رغاونې يې ناسمې دي، ځکه ټول جمهوري

نظامونه او واکمن يې هغه پخوانی مثبت جاج راخپلولای نه شي !
کمپيوټر له آره د حساب ماشين په نا سمه مانا رادود شوی، له همدې کبله ايرانيانو لومړی رغاونه((شارګر)) پر((راينر)) بدل کړ، مګر عربو هماغه مشهور غلط((حسوب)) وساته. موږ بيا د مايکروسافټ کمپنۍ د 35ژبو په لړکې له نوي جاج سره سم پر((سولګر)) راواړوه، ځکه له سول(عقل) سره کار لري او((مصنوعي ماغزه)) بلل کېږي.
پخوا په پرمختللې لويديزه نړۍ کې((ببرا))ته **Mongoloid** ويل کېدل او معيوب ته **handicaped**، خو له ډېر مهال راهيسې دغه سپکې نومونې پر **Down,s syndrome** او **disabled** اړول شوې او ايرانيانو دواړه په لا ادبي بڼه((کم توان)) رااړولې. خو په افغانستان کې يې لا هماغه زړې نومونې((معيوب، معلول، معلوليت لرونکی)) کارول کېږي او غونډ وزارت يې په همدې نامه نومولی دی. په کار ده، په دواړو رسمي ژبو((کمتوان)) او ((کمتوانه)) و بلل شي چې په پښتو کې((توان)) بيا يو ځپيز ويل کېږي. دانو کوم وېښيار لږ تر لږه دبې ليدو او کم ليدو اړونده مهالنۍ د ايرانيانو په مثبتو پېښو((روشندلان)) نومولې چې پښتو انډول يې((روښان زړي)) راځي !
**15**- ځينې پوهيال او فرهنګيال پښتانه د دې ورانپوهاوي ښکار شوي چې ګوندې زړې دوديزې او نوي نړيوالې ورځنۍ نومونې زموږ په ياد شويو ډګرونو او په ځانګړې ډول، فرهنګي هغو کې نه راځي او له دې لامله يې را پښتوکول بېځايه يا نا اړين دي ، لکه: پخلنځی، پخاوو يا پخليکار، سهارنۍ (بريځر)، غرمنۍ، ماښامنۍ، لمباځی،لاسولونې (دستشويه)، ځانوچونی،مخوچونی،لاسوچونی ياځانخپونی، مخخپونی، لاسخپونی، جېبخپونی، پزخپونی...

**16**- د مدني يا ټولنيزو ادابو يا چال چلند نومونې، لکه: مننه، خوښنه ! منندوی(ممنون) ! هرکله ! هيله کوم ! هرکله راشئ، ښه راغلاست ! تر بيا (ليدو پورې) ! وبښئ ! مهربانه شئ ! مهرباني وکړئ !(له ټيليفوني زنګ سره د بلې ! يا هلو ! او يا ديوځه غوښتنې پر وخت) د(لطفاً) پرځای ، سهار يا ګهيځ ښه ! (يانېکمرغه !) شپه ښه ! لوهه يا اشتها ښه ! روغتيا !(د پرنجېدا په غبرګون کې) او داسې نور. په دې لړکې کولای شو ، په ولس کې يو شمېر تياري ښېلګې هم له نومهالي ليکلړ سره راخوندي کړو ، لکه: ستړی مه شې ! ستړي مه شئ ! خوار مه شې- شئ ! زهير مه شې- شئ ! کور ودان ! پرمخه مو ښه ! ديوګړي يا مفرد لپاره ډېرګړی کارول، لکه((تاسې)) د((ته)) هم له نويو ټولنيزو ادابو څخه
ګڼل کېږي؛ لږوډېر ښاري پښتنو د پارسيوانو په پېښو د درېيم يوه وګړي(غايب) لپاره ((دوی)) او((هغوی)) هم کاروي ! په جرمنانو کې بيا مخامخ يو کس ته همدا غايبه جمع دود ده. لوړو

واکمنانو(شاهانو، هېواد مشرانو... )

ته پښتانه کولای شي،((ستاسې درشل ! )) یا(( ستاسې درناو ! ))او یا نورسوچه پښتو وییونه وکاروي !

داچې دغه برخه وروسته زموږ د ټولنیز دود دستور یوه برخه ګرځي، نو اړوند څانګوال یې باید په رغاونه کې پر لنډون، روانۍ، اسانۍ، خوږغږۍ او نورو تخنیکي آرونو سربېره ټولیز فرهنګي او اروا پوهیز خورمنځ(سلیقه) هم په پام کې ونیسي.

دویم- د رغاونې آرونه او چمونه

1) نوې وییرغاونه(نیولوجېزم) په بنسټیزه توګه ، په ګړنۍ ژبه کې د تیارو شتو توکو او مخبېلګو له مخې چې ویونکیو د پېړیو په پوړیو کې په نا اګاهانه توګه رامنځته کړې دي، د اړوندو څانګپوهانو له خوا په بېلښتي (اشتقاقي) او تړښتي(ترکیبي) ډول ترسره کېږي؛ پرتله(قیاس) او مانا بدلون(سېمانتېزم) یې په څېرمه، یا بشپړاندو ډولونو کې راځي.
2) په بېلښتي او تړښتي دواړو ډولو کې د مخني وییې خپلواک(واوېل) زیاتره غورځي،لکه: ټولنیز، نه ټولنه یز، ژوبڼ، نه ژوی بڼ، همداسې برخلیک، برخوال، پانګوال، ځمکوال، پوهنځی، پوهنتون.. یوازې په هغو رغاونو کې نه غورځي چې مانیز ټکر رامنځته کوي، لکه((سیمه ییز )) که ((سیمیز )) شي، له((سیم)) سره تړاو پیداکوي، یا((سوله ییز))، ((سولیز)) شي، له سول(عقل) سره تړاو مومي.
3) الف= بېلښتي یااشتقاقي( **derivative** ) ډول یې دوه رازه دي: کړوال او نوموال.
(**1**)کړوال بېلنګ(فعلي مشتق) چې کړنوم(فعلي اسم**verbalnomen**) هم بلل کېږي، له یوې کړستېې یا ریښې سره د روستاړي په نښلونه رامنځته کېږي.
خوړ+ل=خوړل، خوړ+ن=خوړن، خوړ+نګ=خوړنګ، خوړ+نه= خوړنه، خوړ+انه= خوړانه، خوړ+ون=خوړون، خوړ+ونی= خوړونی، خوړ+ونکی= خوړونکی، خوړ+لی= خوړلی، خوړ+ښت= خوړښت(خورښت ! )، خوړ+ه =خوړه، خواړه خوړ+ین= خوړین؛
په(( خو+اړه= خواړه )) کې منځونج (**Ablaut**) راغلی، مانایې دا چې واوېل(الف) په سته یا ریښه کې ورننوتی دی. په((خوړه)) کې بیا پر روستاړي(**a**-)سربېره یو بل **a–**-په هسته کې هم ورننوتی چې یوازې یې په غږیز لیک(**xw-a-r-a**) کې ښوولای شو او همداسې په ځینو نوروکړوالو او نوموالو بېلنګونو کې.

له وسمهال(حال) ريښې((خور=)) سره: خور+صفر =خور، خور+ند= خورند ، خور+ندی= خورندی، خور+ندوی= خورندوی، خور+اک=خوراک، خور+اند= خوراند ،خور+اوی= خوراوی، خور+که= خورکه، خور+اړه= خوراړه(جذام)؛ خوړونکې(جذام) چې (راتلونکې=آینده) یې ښځینه بېلګه ده.

همدارنګه:

د کلیوال پر بېلګه: لیکوال، څېړنوال، برخوال، مینه وال، ګډونوال، پوهنوال، ډګروال، ښاروال، ولسوال، څارنوال، بندروال...؛دخبریال پر بېلګه: مرستیال، پوهیال، ننګیال، فرهنګیال، توریال...؛

د ګټیالي پر بېلګه: پوهیالی، زمریالی، فرهنګیالی(خوشال)، جنګیالی، توریالی، ننګیالی...؛
د لوټمار، شوکمار یا داړه مار پر بېلګه: سوکمار(بوکسر)، کنځلمار....
همدارازیو شمېر نورې نوې او لرغونې مخبېلګې چې له ځینو ځینو کړسته‌وسره اړخ لګوي:
نوسی، زوی، ژوی، ژوند ، ژوندون، غبرګون، لنګون، زېږون، ژوندی، ژواک، وژلون، خرڅلون، ویی،سهي، تنهۍ، نرۍ، څڅۍ (ناوه= تره) (نوې:خپرنۍ، رسنۍ)، وریځ،ودېر، بهیر،زهیر، بهی، غورځی، ترږاو، استوګه، استوګنه،استازی، استوزه،استازګر(-ی)، سپېڅلی، ښکلی، وللی(ناولی)، غښتلی، منلی،پوولی(مهذب-درګۍ) اټېران، ډېران، پېزوان، رېږدان، زیلان یا زېلانځ، دریځ، ختیځ، مینځ(منځ)، اوریځ،(اخځ، لوبیځ) او نور (وییپوهنه **58-66**اوبیا **67-111**مخ).

(**2**) نوموال بېلنګ (اسمي مشتق) له یوه ساده (یووستوي)=او څه ناڅه بېلښتي او تړښتي= ویي سره دیوه تاړي( **affix** )، په بله وینا ،مختاړي ( **prefix** )، منځتاړي( **infix** ) یا روستاړي( **suffix** ) په نښلونه یو نوی بېلنګ (مشتق) رغول کېږي.

له مختاړي(نا-) سره د ((ناروغ))، ((ناجوړ))... پر بېلګه: ناویسا ،ناسم؛
له (بې_) سره د((بې وزله))،((بې واکه))، ((بېځایه))... پر بېلګه: بېچار(غیر فعال، پسیف)، بې توپیره، بې لیک لوسته، بېواک(کنسوننټ)....

له روستاړي (نی-) سره د((کورنی)) پر بېلګه: اورنی،منځنی؛

له (ـنۍ ) سره د((کورنۍ ) ) پر ببلګه: اوونۍ له(ـتون ) سره د((مېړتون ) ) پر ببلګه: پوهنتون، وړکتون؛

د ببلتون، پېغلتون، بنتون، کونډتون،((سپینتان ! ) ) پر ببلګه:پیوستون؛

له(ـغالي ) سره د((پنډغالي ) ) پر ببلګه:لوبغالي، کارغالي (کارګاه؛
له = غاړي سره د لوبغاړي پرببلګه؛ ورکشاپ ) ؛

له(-له ) سره د ګردله، پایله، یا ښاخله، ایشله.. پر ببلګه: ربړدله(زلزله ) ، غونډله(جمله )....
له فعلي ستنې سره د سرکښ، خواریکښ، تورکښ، سرېخور، بډیخور، تالي ځتې، کوزګوری.. پر ببلګه: زیارکښ، مخکښ، ځانساتی، سوله
ساتی،لنډوینی،لروین،لروینی،ښهوینی،بدوینی،لرلید ، لرلیدی،اوبلری....
یادښت: څنګه چې په پښتو کې ددغو نومیزو روستاړو شمېر تر پېنځوسو ور اوړي او له دې پلوه یې د تیارو ببلګو شمېر هم همدومره ګڼ دی، نو په وییرغاونه کې یې تر دوه نورو ډولونو زیاته برخه اخلي او له ښایسته ډېرو نومونو سره نویزونه(نیولوجېزمونه رامنځته کولای شي؛ په دویم کچ کې یې د مختاړو هغه راځي او د منځتاړو هغه یې په درېیم کچ کې.
په همدې ډول نورې ببلګې، لکه:

زړور، کډن، خاورین، خوبجن، هرکلن(د کال او کله دواړو روستاړی ) ، اړخیز، شتمن، مینه وړی، پوروړی، ستومان، زورور، رنځور، مړځپن، غوبل، مینه ناک، کوروالا ، کوچیانی، ژباړه، کرلاڼی، ګګیاڼی، خوګیاڼی، جمریاڼی، زمریاڼی، چمتو ، بسیا ، بېځایه، تربور، ترله، بنزی، پښتونواله، اوبلن، اومغلن، کرغېړن، لنډغر، خورلڼه، خورینه، ویرژلی. پېزوان، کمکوټی، چرګوړی، چرخول، بورجل، غوجل، آسجل، ډنډوری، غونډاری، ربغړ، اوږدړی،منځی، کرتکې، ټیټکې، تاړې،لسیز، لسګون، اتکلي، لنډی، لنډی، لنډکی، هرکلی،څنکه، پنډوکی، چوړکی، ګوتمی یا ګوتمه، ګوته(ګوته+صفر ) ، پېزوان، شلګی، ببلتون، بنتون، کونډتون، پېغلتون، نانغتان،سپیتانه،سپینتان(سپیناوی )....
د نورو ببلګو او ډلبندیو لپاره: پښتو ویي پوهنه **112- 265** مخ.
**2** ) ترښتي یاترکیبي( **compositional** ) ډول یې دادی چې یو ترڼګ(ترکیب ) د شته ببلګې یا ببلګو له مخې دوه یا زیات یووستوي، یاهم لږډېر نایووستوي وییونه(نومونه، ستاینومونه، شمېرنومونه، نومځري، کړولونه، وییکي ) سره داسې یوځای کېږي چې د لومړي ویي یا لومړیو وییونو واوېلي پایلې زیاتره او خجونه( له جوړه ترڼګونو پرته ) یومخیز غورځي او یوازې

وروستى ويى يې د ټول ترړنګ په استازۍ يو پايخج راخپلوي او له اړتيا سره سمې ورپورې هر راز صرفي، نحوي يا لغوي پايلې اوروستاړي نښلول کېدای شي.
د کټمل پر بېلګه: پوهنمل، ولسمل، سوله مل، سنګرمل... ؛
د تولترړنګ(اضافي ترکيب) پرهر پاڼه، خرغوړ، ګلغونډۍ، ګلکڅ،...پر بېلګه: ګلپاڼه، شپې پاڼه، تندي ليک، سرليک، برخليک، پرېکړه ليک، ډېرليک، نومليک، سمونليک، لارليک، لاريون، ليکدود، ليکلار... ، ژبپوهنه، ټولپوهنه، شمېرپوهنه(علم الحساب)، مېچپوهنه(هندسه)... ؛ اورلوبه، وزلوبه، بڼکلوبه، پای لوبه، نيم پايلوبه، لوبډله، لاريون، سرټکی، منځټکی، پايټکی، ناستخونه، خوبخونه، کارخونه، ونجخونه(دکاليود بدلولو خونه) ؛

په همدې لړکې د مېله ځای پر بېلګه: مېشتځای او د( اجلځی، استوګنځی) پر بېلګه: ښوونځی، پوهنځی، تمځی(يا تمځای)، پخلنځی، کارځی، لوبځی، پالنځی،روزنځی، زېږنځی،زېږځی، وتوځی... ؛

کړستاينوميزو بېلګو له مخې، لکه ازارګټلې(چاروال ياني ازارګټونکی)، سرخوړلی، ډيرخربيلی، پرتوګ شلېدلی ،=شلېدلې (بېچار)، له کاره وتلی، پز پرېکړی، سرماتی غاښ وتلی، خدای شرمولی رسول ځغلولی، سپمولي سپو خوړلي(متل)، جنګ ځپلی، نېز يا سېلاو ځپلی، زلزله ځپلی، وچکالۍ ځپلی... په کمپېښې يا نادره توګه د بېلنګ((بېواک)) پر بېلګه رغېدلي ترړنګونه: خپلواک، بلواک، ټولواک، زورواک، چارواک، کورواک(کورواکي)، ټولواکمن، ټولواکمنه، ټولواکمني...
د مور- و خور- يا خرغود له مخې: لارښود، کالښود، کتابښود، ليکښود، ليکلارښود.

له منځتاړي(ـاـ) سره د ((بېلابېل))،((کوراکور))، ((تګ راتګ))... پر بېلګه: سراسر، سماسم.

همدارازله منځتاړي(-را-) سره، لکه ورک را ورک.

له منځتاړي(-و-) يا(-صفر-) سره خورا ډېر جوړه ترړنګونه( **copulative** ) رغوي، لکه: مخ و لاس،لاس و پښې، موروپلار، خورو ورور، خور و لور، پنډه و پېړ، پېړ وپلن، پوخ و پياوړی، سپک ورک، سپکې سپورې، ستغې سپورې، ورانې ويجاړې، روغ و رنځور، مرګ و ژوند ، مرګ و ژوبله ،کور و کلی،چم وګاونډ ، ، يوولس، لروبر، ارت و بيرت، زه او ته ؛ که لومړی غړی

ویی خپلو اکپای وي،((و ) ) ورسره منځتاړی کېږي، که نه((او ) ) ورسره د خوږ غږی، اسانی او روانی لپاره د منځتاړي په توګه راتلای شي.
کله دغه بیا د لنډون (لکه په شعرکې ) او یاهم د خوږ غږی، روانی او اسانتیا لپاره په هر اکر(حالت ) کې غورځول کېږي، لکه: لارې چارې، چال چلند ، شر غوبل، شخه شولانګه، ناسته ولاړه، پوخ پتیر، سم سهي، سم دم، سم سیده، سیده او ناسیده، تورو سپین، سپین سپېڅلی، پاک سپېڅلی، پاک ساک، سروپای، پیل و پای، کرکیله، پوله پټی، کور اور، ژرنده جومات، دېره او جره، جرګه مرکه، جنګ جګړه، ماته ګوډه، وچه لمده، سپوره او پوره(ې ) ، لمده وچه(د لوبې پچه ) ، خاورې ایرې، خاورې دوړې، روغ ناروغ، جوړ ناجوړ، شاړ شډل، اتلس، راشه درشه، کښته پورته، هغه دغه.. ؛ لیک و لوست، پوهه او فرهنګ، شپه او ورځ، سهارو ماښام، وخت ناوخته، اند وژوند ، اند و واند ، ژوند و ژواک، جنګ و سوله، جنګ جګړه، اور و وینې، اوښکې وینې، هډو پلې، هډو پوست، اغلې ښاغلي، ښاغلي راغلي، ګران او منلی، اکر بکر(حال احوال ) ، اکروکر(حالت و هویت ) ،پوښتنه او غوښتنه، ښمروښېګڼه(خیروښېګڼه ) ، ښوونه او روزنه یا ښوونه روزنه، وینه او مینه، مینه او مننه، مینه لورېینه، مینه او پېرزوینه، مینه لېوالتیا ، لېوال و مینه وال، تاندوښېراز، سمسور و ښېراز، تېنګ و ترینګ، لاره روده، ورم و وراشه، توند وتېز، زخمي ژوبل، خوښي او نېکمرغي، ښاخ و ویاړ، خنډوځنډ ، ناخوالې بخولې، ناورین و ناتار، ویر و ناورین،کور ډوډی کالي... دواړه ډوله نوې رغاونې دي.

د شدوپی یا شودوپی او مستوپی( لوبه ) پر بېلګه، سړوپی د( شیریخ، آیسکریم) او شودې وریجې د(شیربرنج ) لپاره رغول شوې دي.

3 ) پرتله(**Analogy** )

د وییرغاونې دا څېرمه ډول په ژبه کې د داسې زړو بېلښتي(او یو څه تړښتي ) مخبېلګو له مخې را منځته کېږي چې بنسټ او تاړی یې پکې په اسانه توپیر بدای نه شي او د یووستوو یا ساده وییونو په توګه ورسره چلند کېږي. (دغلته< لیکنښه د سرچینې یا منشأ په مانا کارول کېږي)

بد ګڼه< ښېګڼه، خمسور< سمسور ؛نمښته (انکار )< منښته(اعتراف ) ، دلته مخبېلګه(منښته ) هم له کړنوم< منښت څخه تازه رغېدلې ده.

نندارمه(ډرامه، نمایشنامه )< څېرمه، وړمه، لېمه، زېږمه، ژامه،ګوتمه ، کولمه، زېرمه،

پیاړمه..؛

غونډله(جمله)< شمله، ژوبله، پشېرله، دوشېرله، ګردله، رېږدله(زلزله)، ځاله، ورله، ترله، پرله(-پسې، - پورې، - پېيلې، -غښتی، -اوښتی، -باندې، -وهلی)؛
سازمان< ستومان، درېمان(په دې توګه سازمان له پښتو وییرغاونې سره هم اړخ لګوي) او پارسي پورويی ورته نه شو ویلای؛

د درېبل(سه پایه)، غوبل، کوږبل... پر بېلګه سربل(پیشینه)، اوستربل(پسینه)، غبرګبل(**ambi-position**) هم ددغې لړۍ نوې رغاونې دي، که څه هم سربل او اوستربل په سویل لویدیزو ګړدودو کې د ستاینومونو او کړولونو په توګه په لږوډېر جولیز بدلون کارول کېږي او په نورو لکه شمال ختیزو هغو کې یوازې د سربل اړولې بڼه((روستنبال،روستمبال)) لږوډېر ویل کېږي، یوه ګړدودي بڼه یې هم((روستېبل)) ده(پق)؛
منځینه()< ښځینه، مهینه، پسینه... ((منځینه)) د پښنوییز نوږي یاګرامري جنس((مخنث)) په جاج رغول شوی او له دوو نورو انډولو څخه یې((ښځینه)) د سپمانتېزم په توګه د(مؤنث) او بیاورسره ((نرینه)) د (مذکر) په مانا هم رامنځته شوي دي؛
یوګړی(مفرد)، دوه ګړی(تثنیه)، ډېرګړی(جمع)< منځګړی، درېمګړی= ژرنده ګړی، واره ګړی او داسې نور د چارنومونو په توګه دلته دومره اړخ نه لګوي؛
څلاري(چار راهي) له دې پلوه په دې لړۍ راځي چې د ((څلېر(حوض)، څلېر ویشت، څلوېښت، څله، څوارلس...)) له مخبېلګې سره سم پکې لنډون راوستل شوی، ځکه تړښتي رغاونې((څلورلاري)) یې دود او منښت ګران برېښېده؛ دوه لاري، درېلاري پرتلیزې بېلګې یې خو بې له هغې درې څپیزې دي او ورسره ښه ترا اړخ لګولای شي؛
سرلاری<سرغاړی، سرغړاندی،سرزوری، سرټیټی، ټیټ سری، پلن سری،پلنغوږی، یوسری، خپلسری(پق **633-621**) ځانتېری<سرتېری، سرتېر، سرلوړی، سرکښ، تورکښ سرټکی سرښوونکی، سروزیر(ترلومړي وزیر لنډ او کره راځي)؛
**4**) ماناونج (بدلون): د وییرغاونې دا دویم څېرمه ډول په دې ډېر ارزښت لري چې له جولیز(شکلي) پلوه ورسره وار له مخ سترګې اشناوي او تش له مانیز پلوه پکې بدلون راوستل کېږي. داسې چې یا یې کرټه بله مانا ځای نیسي او یا یې له پخوانۍ مانا سره سره دویمه هغه ورسرباري کېږي، په بله وینا ،پر دوه مانیز ویي اوړون مومي.

| زړه مانا | نوې مانا |
| --- | --- |
| پنډغالی | شپول(څاروي |

کمپ پچه
پشقل قُرعه
خبريال مخبر،چوغلګر ګوزارشګر
پايله پايزيب نتيجه
ژباړه ژبې ترجمه
دريځ ممبر موقف، موضع،موقعيت...
هوکړه هوکې قبولي(کوژده،واده) منظوري، تصويب، اپروال
ننګول ننګونه پرغيرت راوړل،التجأ چېلنجول، چېلنج، چالش
(پانګول، پانګونه بيا پر همدې قياس شوي دي)؛
سترګې دوره او ژرندې لخک... عينک
غوربې ښکارځېره،پسپسک ګوشي، ګوشک
پندغالی د رمې شپول کمپ
ناسته ناستی اسهال جلسه، نشست
غورځنګ ټوپ،حمله جنبش، نهضت(حبيبي)
بهير دمېږو ،وګړوروان کتار جريان، پروسه،پروسس
(و)روستاړی دمچی، پاردم پسوند ، سفېکس
مختاړی او منځتاړی بيا پر هدغه بېلګه رغول شوي؛ تاړی(وند affix) هم
ترې را اخېست شوی دی

## پښتانه او بابر

ځومره يرغلونه چې بابر د پښتونخواله يوه نه تر بل سره، په بېلو بېلو پښتنو قومونو او د هغوی په ځينو نورو وطنوالو کړی او ځومره د عام قتلونه او مرګونه يې چې پدی يرغلونو کی کړی دی؛ ځومره سرونه يې چې پری کړی، ځومره کله منارونه يې چې جوړ کړی، ځومره کلی او کورونه يې چې وران کړی او ځومره مالونه يې چې تالا او زور ګيره کړی دی، ښايي چې بل هيڅ جهانګير او يرغلګر به نه وی کړی. خو په عين وخت کی ځومره معلومات چې موږ ته پښتني ټولنی د بيلو بيلو اقوامو او قومی مشرانو د اجتماعی هويت او جغرافيايي موقعيت او د پښتني ټولنی د ي، شمير نورو مميزاتو او ختی د پښتونخوا د يولړ خصوصياتو په باره کی د بابر د خاطراتو له لاری رارسيدلی دی، د بابر تر وخته او حتی له هغه نه تر ډير وروسته وخته پوری، د بل هيڅ اثر له لاری نه دی رارسيدلی.
ځکه نو موږ دلته د بابر له خاطراتو يا بابر نامی نه تقريباً هغه يادونی را اخيستی چی په پښتونخوا کی د پښتنو په باره کی شوی دی. موږ دا مطالب د بابر نامی له هغی نسخی نه ترجمه کړی دی چی انيتا بيورج په کال ۱۹۲۲ کی له ترکی نه په انګريزی اړولی او په کال ۱۹۷۹ کی په نوی ډيلی کی بيا چاپ شوی ده. د ځيرونکو د کار د آسانتيا د پاره ، د پښتو ترجمی په بيلو بيلو برخو کی د بيورج د انګريزی نسخی مخونه هم ښودل شوی دی.
موږ په ترجمه کی د امانت داری په خاطر د بابر نامی انګريزی عبارات تر ډيره حده جمله په جمله او حتی کلمه په کلمه ترجمه کړی دی، خو په عين وخت کی مو کوشش کړی چی پښتو هم تر ممکنه حده روانه او د فهم وړ وی. که مو چيرته د مشروع او مطلوب اختصار په خاطر په کوم عبارت کی کومه کلمه يا جمله غورځولی، د هغی پر ځای مو ټکی ايښی دی. کله مو که په متن کی کومه کلمه يا فقره د مفهوم د پوره افادی او وضاحت د پاره ورزياته کړی، هغه مو پدی قوس [] کی ليکلی ده.

بابر کابل په کال ۱۵۰۴ کی ونيو ، خو په بابر نامه کی يي له پښتنو سره د مخامخ کيدو او جګړو ګزارشات هلته پيل کيږی چی د کال ۱۵۰۵ د جون په مياشت کی له کابل نه د هندوستان د سفر په نيت وزی. د بابر دا سفر د جګدلک له لاری پيل کيږی او له پښتنو سره يي د مخامخ کيدو ګزارش د همدی سفر په اول سر کی هغه وخت پيل کيږی چی ګرم چشمی ته رسيږی. په همدی ځای کی د پښتنو د يوه مشر يادونه کوی او ليکی چی د ګګيانړو مشر ، فاجی، ظاهراً، له خپل کاروان سره راوستل شو. موږ هغه را سره بوته لار راوښيي) (مخ ۲۲۹ )
بابر وروسته له يو دوه مزله له خيبر نه اوړی او جم ته رسيږی. هلته يو څه تم کيږی. له جم نه مخ په

کوهاټ خوځیږی. هلته یوځل بیا د ګګیانو پښتنو یادونه کوی او لیکی چی ( پدی وخت کی ګګیانی افغانان په پرشاور [پیښور] کی اوسیدل. خو زموږ د پوځ له ویې د غرولمنو ته تللی وو. یو مشر یې کمپ ته زما سلام ته راغی. موږ هغه له فاجی سره یو ځای راسره بوته چی ګوندی لار راښیې. ) (مخ ۲۳۰ )

بیا لیکی چی ( له کمپ نه نیمه شپه وخوځیدو. سهار وختی له محمد فاجی نه و اوښتو او د سبا ناری په وخت کی په کوهاټ کی کوز شوو. ډیری زیاتی د غویو ګلی او ګامیښی زمږ د پوځیانو لاس ته ورغلی. ډیر زیات افغانان ګرفتار شول. خو ماټول راټول او خوشی کړل د کوهاټ په کورونو کی بیخدو حصره غلی موجودی وی. زموږ یرغلګروان د سند تر سینده پوری یرغلونه وکړل او وروسته له یوی شپې مو په کوهاټ کی تیری کړی، پدی باره کی مشوره وشوه چی بل په زړه پوری اقدام به مو څه وی. فیصله وشوه چی د بنګښو په افغانانو او د بنو په ګاونډ یرغل وکړو او بیا د نغز یا فرمل له لاری کابل ته ولاړ شو.

په کوهاټ کی دریاخان د یار حسین زوی...خواست رانه وکړ چی په د لزاکو ،یوسفزو او ګګیانو باندی یو شاهی فرمان راکړه ځکه کله که زه وغواړم چی د سند د سیند له هابلی غاړی نه د پادشاه په نامه جنګی میړونه راټول کړم نو هغو به غاړه ونه غړوی، دریا خان ته دا فرمان ورکړل شو او له کوهاټ نه رخصت کړی شو ) . (مخ ۲۳۱ ) (دریا خان پدی وخت کی د بابر په هدایت د اباسیند په شرقی غاړه کی، حسن ابدال ته نږدی کچه کوټ کی د یره دی - پښتو مترجم).

بابر له کوهاټ او هنګو په لار بنګښو ته روانیږی او پدی باره کی لیکی چی ( د کوهاټ او هنګو تر منځ لار په یوه تنګه دره کی تللی ده. کله چی موږ د غی دری ته ورننوتو د کوهاټ او شاوخوا سیمو افغانان ددری له دواړو خواوو نه دغرو په لمنو کی راټول شوی وو او د جګړی چیغی او ناری یې وهلی. زموږ لارښود ملک بوسعید کمر یې ته د افغانانو موقعیت ډیر ښه معلوم و. هغه عرض وکړ چی وړاندی زموږ ښی لاس ته یوه ځانته غونډی ده که افغانان د غرو له لمنو نه ورته راښکته شی،نو کیدی شی ربنتیا هم راکوز شول. موږ د جنګی میړونو یوی ډلی ته وویل چی د غونډۍ او غرونو تر منځ تنګی ونیسی.نورو ته مو وویل چی دواړو خواووته یې حرکت وکړی.پدی ډول به له دواړو خواوو په افغانانو حمله وشی او پول به تباه کړی شی. څرنګه چی په افغانانو له هری خوا حمله وشوه ،هغوی حتی جګړه هم ونه شوه کړی او سل دوه سوه تنه یې ونیول شوی. ځینی ژوندی راوستل شول.خو د ډیرو یې فقط سرونه راوړل شول.موږ ته ویل شوی وو چی افغانانو ته د مقاومت توان پاتی نه شی، شنیلی په خوله کی نیسی، خپل دښمن ته ورځی او پدی ډول ورته وایې چی:( خو سکی دی یم ) دلته موږ دا دود ولیده. کومو افغانانو چی مقاومت ونه شو کړی، شنیلی یې په خولو کی نیولی وو موږ ته راغلل.

کوم یي چی زمونږ سړو د اسیرانو په توګه راوستی وو ، امر وشو چی له ټولو نه یي سرونه پری کړل شی، له ککرو نه یي زمونږ په کمپ کی ځلی جوړ شو. په ورپسی ورځ مونږ وړاندی ولاړو او په هنګو کی کوز شوو هلته د هغه ځای افغانانو په غره کی سنګر جوړ کړی ؤ.ما د سنګر لفظ وروسته له دی چی کابل ته راغلم، واورید. زمونږ سړی مخامخ ور وختل. سنګر یي مات کړ او د سل دوو سوو مغرورو افغانانو سرونه یي پری کړل هلته هم له ککرونه ځلی جوړ شو. له هنګو نه شپه په لار ټل ته چی له بنګښنو نه کوز پروت دی، ولاړو. هلته هم زمونږ میړنو په شاوخوا افغانانو یرغل وکړ خو ځینی یي له سنګر نه بیرته راغلل او ډیر څه یي رانه وړل. (مخونه ۲۳۲-۲۳۱ ).

بابر له ټل نه بنو ته ځی او د بنو په باره کی لیکی: (د بنو ځمکی کورانی، کیوی، سور، عیسی خیل او نیازی افغانان ، کری، کله چی په بنو کی کوز شوو ، وامو ورید‌ل چی ددښت قبایلی میړونه مقاومت کوی او د شمال خواته په یوه د غره کی سنګر نیسی. د جهانګیر میرزا په مشری یوه قوه په ونیو او قتل عام یي ګډ کړ. ډیر سرونه یي پری کړل او رایي وړل. ډیر سپین رخت لاست ته ورغی. په بنو کی موهم یو کله منار جوړ کړ. وروسته تردی چی سنګر ونیول شو.د کیوی مشر ښادی خان شنیلی په خوله کی نیولی ؤ. زما حضور ته راغی او اطاعت یي وکړ. ماټول اسیران وبښل.

د کوهاټ له لاندی کولو نه وروسته فیصله شوی وه په بنګښنو او بنو یرغل وکړو او دنغر یا فرمل له لاری کابل ته ولاړ شو. خو کله مو چی بنو لاندی کړ، نو هغو کسانو چی په ملک کی بلد وو ، عرض وکړ چی دشت نژدی دی او ډیر خلک پکی پراته دی او لاری یي هم ډیری ښې دی ، نو فیصله وشوه چی په دشت یرغل وکړو او بیا د فرمل له لاری بیرته کابل ته ولاړ شو. بله ورځ روان شوو او د عیسی خیلو په یوه کلی کی چی د کرمی د سیند په غاړه پروت دی، کوز شوو. خو څنګه چی کلیوالو اوریدلی وو چی مونږ ور روان یو ، نو د چوپاره غرونو ته تللی وو. زمونږ یرغلګر د چوپاره غرونو ته وروختل، د عیسی خیلو سنګر یي وران کړ او د میړو او پسو له رمو او ټکرانو سره بیرته راغلل. پدی شپه عیسی خیلو حمله راباندی وکړه. خو څنګه چی مونږ د ښارنی ډیر ښه بندوبست کړی و ، نو هیڅ یي ونه شو کړی. ) (مخونه ۲۳۴-۲۳۳ ).

بابر د چوباره د غرو له لمنونه مخ په غرب خوځیږی او ماسپښین مهال یي ځینی سپاره ددشت اوخواته رسیږی او یو شمیر کلی لوټ کوی. بابر خپله پدی باره کي لیکی چې (هلته مو دتم کیدو په وخت کی، لوټمارانو عالم عالم پسونه او میږې او د غویو ګلې راوستې. دغه راز یي له سوداګرو افغانانو نه چې په لاره کې ورسره مخامخ وی وو ، سپین رخت خوشبویه رینښې، بوره او تیپو چاق راوړل او د خرڅلاو دپاره روزل شوي اسونه يې ورنه راوستل. هندي مغول یو مشهور او محترم افغان سوداګر، خواجه خضرلوهانی، له اس نه را وغورځاوه.سر يې ورنه پرې کړ او رايې ووړ. یو وار کله چې شیریم تغای په نورو لوټمارانو پسې ور روان و ،یو افغان په لاره کې ورسره

مخامخ شو او د شهادت گوته یې ورنه پرې کړه. ) (مخ ۲۳۵ )
بابر د گومل له سیند نه بیرېږي مخ په جنوب روانیږي او پدې باره کې لیکی چې (یو یادوه میله وړاندې یو میر اجل نیولي افغانان د غرو په کوزو لمنو کې راښکاره شول. موږ خپل اسونه پسې ورخوشې کړل. پسې ورغلو . اکثره یې وتښتیدل. خو ځینې امقان یې په کمرونو کښېناستل. یو افغان پداسې یوه ځانته ډبره کیناست چې هابلې خواته یې پاڼو او ځکه یې نو د تیښتې لارنه لرله. سلیمان قلی چوناق چې زغرې یې په تن وې، پاڅیده ، [پدې افغان] ور وغوځید او ویې نیو. داد سلیمان قلی داسې یو کار چې زما په مخ کې یې وکړ او ترفیع مې پرې ورکړه. دډترو د یوې بلې خرې دپاسه قتلق قدم له یوه بل افغان سره وارونه وکړل ، غیږ په غیږ شول او دواړه یې لس دولس یارډه کوز ولویدل. په پای کې قتلق قدم ددغه افغان سر پرې وکړ او رایې ووړ. کوپوک بیګ د یوه بل غره په لمن کې له یوه افغان سره لاس او گریوان شو. دواړه یې د غونډۍ بیخ ته وکوړیدل ، په پای کې یې د افغان سر پرې کړ او رایې ووړ. وروسته ټول اسیر افغانان آزاد کړی شول. ) (مخونه ۲۳۶-۲۳۷ ).

بابر په جنوب وړاندې ځی دوکۍ ته رسیږی. له دوکی نه مخ په غزنی ځی وروسته له یو څو مزله په یوه ځای کې تم کیږی ، هلته بیا په شاوخوا پښتنو یرغلونه کوي او وایي چی ( ما په جهانګیر میرزا امر وکړ چی د یو شمیر تکړه د سبرو مشري په غاړه واخلی او د شاوخوا سیمو په اوغانانو (افغانانو ) یرغل وکړی.......درې څلور مزله وړاندې، جهانګیر میرزا یو شمیر افغانان لوټ کړل او یو څو میږی او پسونه یې ورنه راوستل ) . (مخ ۲۳۹ ) بابر یو څو مزله نور هم وړاندې ځی او د غزنی ولاړو او بوته رسیږي. دلته دی دولاړو اوبو د پاختیا او ښکلا له شاعرانه توصیف نه وروسته وایي چی ( له ولاړو اوبو نه دوه میله لرې موږ یو ډیر ښکلی شی ولید. د آسمان او اوبو تر منځ به د سپیده داغ سرخی ته ورته یو شی یو ځل راښکاره او بیا ورک شو او دا د بتو خیلونه وو. کله به چې بتو خپل وزرونه په هوا کې خوځول نو یو وار به یې سرې بڼې راښکاره او بیا به الونیا شوي. دا بتې په لسګونو او شلګونو زرو څه چې دومره زیاتې وې چې له حساب نه وتلې وې.

د اوبو غاړې ته نه یوازی همدا مرغان، بلکه نور هر راز مرغان هم راتله چې هګۍ واچوي. د اوبو په غاړه کې بې شماره هګۍ وې. دوه تنه افغانان دابو غاړې ته د هګیو د ټولولو د پاره راغلل. زموږ ځینې کسان تقریباً نیمه کروه پسې ولاړل او بیرته یې راوستل. ) هر څومره چې [زموږ سړي] وړاندې ولاړل، او به همدا یوه اندازه یعنې داس تر خیټې وې. څرنګه چې ځمکه اوار دوه، د اوبو عمق دومره زیات نه و. (مخ ۲۴۰ )
بابر له دی ځای نه د غزني ښارته او له هغه ځای نه بیا د کال ۱۵۰۵ د مې په میاشت کې بېرته کابل ته ځی. د همدې کال د جون په میاشت کې غواړی چې په قندهار یرغل وکړي.خو د خپلی ناروغی

او هغې زلزلې له امله چې وايي په کابل او پغمان او شاوخوا سيمو کې وشوه او ښايي چې ددې سيمې په تاريخ کې به يې ساری ډېر کم ليدل شوی وي، د کندهار له يرغل نه لاس اخلس او په (قلات غلزايي) حمله کوي. د کلات په کلا کې د جګړې او د خپلو ځينو نامتو ميړونو دوژل کېدلو له بيان نه وروسته ليکي چې ( جګړه تر مازيګره روانه وه او پداسې حال کې چې زموږ جنګي ميړونه جګړې او کار له پښو وغورځول، دکلا دننه خلکو د سولې غوښتنه وکړه او تسليم شول. ) (مخ ۲۴۸ )

بابر پدې پسې د کلات جنوب ته د سوا سنګ او الاتاغ په پښتنو يرغل کوی او بيا کابل ته ځی. دی خپله پدې باره کې داسې ليکي: (په کومه شپه چې په کابل کې کوز شوو زه کلاته ولاړم. څرنګه چې خيمه او غوجل په چهار باغ کې وو ، يو خير يلچی [افغان] ورواووښت او هم يې زما کهار اس له يراق سره بوته او هم زما کچر ) (مخ ۲۴۹ )

بابر د کال ۱۵۰۷ دمی په مياشت کې په غلځو باندې د حملې په نيت خوځيږي او د هېل دې مهم په باره کې ليکي چې ( موږ له کابل نه پدې نيت راسپاره شوی وو چې په غلجو يرغل وکړو. کله چې په سر ده کې پياده شوو ، خبر راغی چې ډېر زيات مومند (افغانان) له موږ نه پنځه ميله په مشت او سکانه کې، پراته دي. زموږ بيګانو او سر تيرو غوښتل چې په مومندو يرغل وشی. مګر ما وويل آيا دا به صحيح وي چې موږ خپل اصلی هدف پريږدو او په خپلو بزګرو يرغل وکړو؟ په دا کار نه شي کېدی. ) (مخ ۳۲۳ )

بابر د حملې پرځای د تګ فيصله کوي او ليکی چې له سرده نه په تياره کې روان شوو. د کتواز دښته مو په تياره کې ووهله..لمر راختلی و چې ددې ټيټو غونډيو او وادی له لمنو نه هغې دښتی ته ووتو چې غلجي له موږ نه يو ييغاچ [پنځه شپږ ميله] لری پکی پراته وو. څنګه چې دښتی ته ور نوتو د [غلجو] تور والی راتر سترګو شوو. دايا ددوی د [کيږديو] تور والی او يايي داورونو دود و.......کله چې تقريباً يو شرعی(دوه ميله ) پداسې حال کې وراندې ولاړو چې د افغانانو تور والی راترسترګو کېده، د يرغل اجازه ورکړل شوه. بې شماره ميږی او پسونه مو لوټ کړل. دومره زيات چې په بل هيڅ يرغل کې لاس ته نه وو راغلي. کله چې له لوټ نه وروسته بيا روان شوو ، د افغانانو ډلې يوه په بله پسې دښتې ته راکوزې شوې او جګړه يې راوپاروله. ځينې بيګان او نور ميړونه پسې ورغلل او د افغانانو يوه ډله يې ببخی تباه کړه. ناصر ميرزا هم عين کارو کړ او د افغانانو يوه ډله يې ببخی تباه کړه. ناصر ميرزا هم عين کاروکړ او د افغانانو له ککرونه ځلی وړشو. (مخ ۳۲۴ )

بابر د هغی ولجې په ارتباط چې له غلځو نه يې وکړه ليکی چې له هغوی نه يې ( يو لک ميږې او پسونه بوتلل. ) (مخ ۳۲۵ )

بابر د کال ۱۵۰۷ په سپتمبر کې يو ځل بيا له کابل نه د هند په نيت خوځيږي او د سفر په ابتدا کې

کې له مختلفو پښتنې قبايلو سره خپل تصادمات بيانوي.دی ليکی چې(له کابل نه د خورد کابل په لارو خوځيدو او په سرخ رباط باندې ښکته قوروق سای ته ولاړو.د کابل او لمغان (ننګهار ) تر منځ افغانان حتی په کراري او آرامي کې هم غله او هم د غلو ملګري دي. دوی داسې پيښه له خدايه غوښتنه او ويل يې چې (هغه چې [ بابر ] له کابل نه وووت ) او خپله بد عملی يې لس برابره کړله،تردې حده چې په کوم سهار چې موږ له جګدلک نه روان شوو ، ددی ځای او لمغان تر منځ پرتو افغانانو ، لکه خضر خيلو ، شيمو خيلو ، خيريلچو او خوګيانو ،غوښتل چې کوتل بند کړي. ډيرو يې چې د شمال خوا ته غروته ختلی وو ډولونه وډنګول او ايستلی تورې زمونږ په لور راوخوځيدل...[خو] په پای کې وتښتيدل.
کله چې زه په افغانانو پسې غره ته ورختلی وم، د هغوی يو تن مې چې له مانه کوز په منډه روان و په لاس وويشت. دا په غشی لګيدلی سړی او څو تنه نور راوستل شول او ځينې يې د نورو د عبرت دپاره ووژل شول. ) (مخ ۳۴۱ )

بابر داځل ترکونړه پورې ځی. خو د هندوستان له تګ نه بيا هم لاس اخلی او بېرته کابل ته ځی. کله چې په کابل کې د ځينو حالاتو په باره کې غږيږی د (ده افغانان ) نوم هم يادوي او وايی چې (عبدالرزاق ميرزا له ننګهار نه راغی او په ده افغانانو کې ډېره شو. ) (مخ ۳۴۵ )
بابر د کال **۱۵۰۹** په پسرلی کې د مقر په مومندو يرغل کوي او له هغه نه وروسته بيا د کال **۱۵۱۹** تر ابتدا پورې چې لس کاله کيږی، د بابر د ژوند حالات په بابر نامه کې نه دي ثبت شوي. خو د کال **۱۵۱۹** د جنوری د مياشتې له درې يم نه د بابر د ژوندانه حالات بيا په بابر نامه کې راغلي دي او دا هغه وخت دی چې بابر د باجوړ په سيمه کې په چنداول (جندول) کې دېره دی او غواړي چې بابر د باجوړ په کلا يرغل وکړي. دی ددې مهم په ارتباط ليکی چې( سپيده داغ له کمپ نه د باجوړ په کلا باندې د يرغل په نيت وروخوځيدو.کلا ته نژدې پياده شوو او ددلزاکو افغانانو يو باوری سړی مو کلاه ورولیږه چې سلطان او خلکو ته يې ووايي چې اطاعت وکړي او تسليم شي. ) (مخ ۳۲۷-۳۲۸ )

بابر وايی چې د باجوړ خلکو يې توصيه ونه منله او ځکه يې نو حمله پرې وکړه، د باجوړ کلا يې ونيوله او اوسيدونکی يې قتل عام کړل. بابر خپله پدی باره کې داسې وايی( څرنګه چې باجوړيان ياغيان او د اسلام له ملت سره دښمنان وو او څرنګه چې د کفارو او معاندينو عادت ببخی پکې عام و نو د اسلام نوم يې له قبيلې نه پيخی ورک شوی و او [ځکه] نو قتل عام شول او ښځې او ماشومان يې اسير شول. تخمين درې زره نارينه يې ووژل شول خو څرنګه چې جګړه د کلا تر شرقي خوا پورې ونه رسېده نو يو څو تنه يې خلاص شول. کلا چې ونيول وه موږ ورننوتو اوومو کتله.

دد ټوالونو دپاسه کورونو کې ، په لارو کې او په کوڅو کې،هر چیرته بی حسابه مړي پراته وو. څوک چې تله راتله په مړو په ختل او ورباندې تېرېدل به. ) (مخ ۳۷۰ )
بابر دلته د شاه منصور یوسفزي یادونه هم کوي او وایي چې هغه (ددې قتل عام په وخت کې د خپل قوم دا ستازي په توګه له موږ سره و او دا فتحه او قتل عام یې د سر په سترګو ولیدل. وروسته له دې چې خلعت مو ورکړ او وروسته له دې چې یوسفزو ته مو د تهدید فرمانونه ولیکل، رخصت مو کړ. ) (مخ ۳۷۱ )

بابر بیا لیکی چې (د محرم د میاشتې په نولسم، په یوسفزیو افغانانو باندی د یرغل په نیت سواد ته روان شوو او د پنجکوړې او چنداول او باجوړ د ګډسیند تر منځ دیره شوو. دلته شاه منصور یوسفزایي د (کمالی) معجونو یو څو مزه دار کنډکی،چې کلکه نشه یې لرله، راوړي وو. یو کنډکی مې درې ټوټې کړ. یوه ټوټه یې ما وخوړه. یوه ټوټه مې ګدای تغای ته او یوه ټوټه مې عبدالله کتابدار ته ورکړه.ډېر سخت یې نشه کړم. داسې چې د ماښام د لمانځه په وخت کې بیګان د جرګې د پاره راغلل.ما ونه شو کړی چې ور ووزم. عجب شی و.
د محرم په شلم کهراج ته مخامخ د کهراج او پشګرام د ناوو په خوله کې کوز شوو. موږ همدلته وو چې تر ښنګري پوری و اوره وشوه. دلته دواورې اورېدل نادره پېښه وه او خلک ورته حیران وو. د کهراج په خلکو باندې د سواد د سلطان ویس په موافقه زما د پوځ د مصرف دپاره د خره په بار څلور زره باره وریژې حواله شوې او خپله هغه [سلطان ویس ]وا ستول شو چې راټولې یې کړی. دې سپین سترګو غرنیو خلکو پخواله دې هیڅکله هم داسې بارنه و منلی. [څرنګه]چې دوی ټولې وریژې برابرې نه شوې کړی. نو تباه کړی شول.
د سه شنبې په ورځ د محرم په درویشتم، د هندو بیګ په مشری یو لښکر ولیږل شو چې په پنج کوره یرغل وکړي....خو خلک یې تښتېدلي وو. زموږ میړونو یو شمیر څاروي راوستل او له کورونونه یې خرې خرې غلې د پوځ د مصرف دپاره راوړې. (مخونه ۳۷۳-۳۷۴ ).
بابر لږ وروسته له یوسفزو سره د خپلې خپښې د بندوبست په باره کې غږیږي او وایی:(ددې دپاره چې د یوسفزیو ولس خپل کړم، نو د ملک شاه منصور لور مې هغه وخت ترې وغوښته چې د یوسفزیو افغانانو دا ستازي په حیث زما حضور ته راغلی و. ملک شاه منصور د ملک سلیمانشاه زوی او زما خیرخوا و. موږلا په همدی ځای کې وو چې خبر راغی چې یوسفزیو د شاه منصور لور له سوغاتونو سره یو ځای راروانه کړې ده.ماښام مو د شرابو محفل جوړ کړی و.د(سواد ) سلطان علاءالدین هم رابلل شوی و او ډېر عزت او خاص خلعت ورکړل شو. د یکشنبی په ورځ له وادي نه وخوځېدو د شاه منصور کشر ورور، طاؤس خان ، د شاه منصور د مخه یاده شوې لور راوسته) (مخ ۳۷۵ )

[د سفر] د میاشتی په اوم بیګان او ددلزاکو افغانانو د سرخلک احصار شول او وروسته له سلامشوری نه فیصله وشوه چې کال په خلاصیدو دی او د کب د کال یوازی یو څو ورځی پاتی دي. د سیمې خلکو غلې ټولی ننه ایستلی دی. که اوس سواد ته ولاړ شو پوځ ته به مو غله دانه ، نه وی ناتوانه به شی. باید داسې وکړو چې دا مبهار او پانی مانی سرک واخلو ، داشنغر نه بر د سواد له سیند نه بیر شو او په هغو یوسفزیو او محمدی افغانانو وروغوځیږو چې د یوسفزیو د مهوری سنګر ته مقابل سمه کې پراته دی. خو کوم بل کال چز دلته راشو نو ، ددې ځای پر افغانانو به تر ټولونه وړاندې فکر وکړو ) ( ۳۷۵ ) بابر خبری ته دوام ورکوی او وایي بله ورځ چې چهارشنبی وه د سواد سلطان ویس او سلطان علاءالدین ته مو چینی او اسونه وروبښل او رخصت مو کړل. موږ خپله روان شوو او باجوړ ته ولاړو. سبا سهار روان شوو او د شاه منصور لور مو د پوځ تر بیرته رابګه پوری د باجوړ په کلا کی پریښوده....له امبهار او پوه بل لوړ کوتل نه و اوښتو او تقریباً ماسپښین په پاتی مالی کی [دا کلمه وړاندې پانی مانی لیکل شوی ده - پښتو مترجم ] ښکته شوو. افغان بردی له یو څو تنو نورو سره وړاندی واستول شوو چې حالات معلوم کړی. څرنګه چې زموږ او د افغانانو تر منځ فاصله لنډه وه، نو له دې امله وخته ونه خوځید. افغان بردی د سبا نارې په وخت کې بیرته راغی. دی یوه افغان ته په غوسه شوی و او سریي ورنه غوځ کړی و. خو په لاره کی یي غورځولی وه. ده داسی معلومات رانه وړل چی د سړی زړه یي غواړی.غرمه شوه.روان شوو د سواد له سیند نه تیر شوو او د ماسپښین لمانځه ته نژدی کوز شوو. د ماسختن د لمانځه په وخت کې بیا سپاره شوو و په چټکی روان شوو. رستم ترکمن مو لیږلی و چې حالات معلوم کړي. لمر یوه نېزه لوړ و چې هغه خبر راووړ چې افغانان زموږ په رابګ خبر شوي وو او خپل ځایونه یي بدلول. یوه ډله یي په یوه لاره چې په غره کی بللی وه، روان وو. موږ پسی ور چټک شوو. یو شمیر یرغلګر مو پسی ورولیږل،د هغوی یو څو تنه یي ووژل او سرونه یي ورنه پری کړل. یو شمیر اسیران او یو څه څاروی یي هم ورسره راوستل. دلزاکو افغانانو هم د یو څو تنو [افغانانو] سرونه پری کړل او رایي وړل. سبا ته وخوځید او د کتلنګ او مقام تر منځ پیاده شوو. ) (مخونه ۳۷۶- ۳۷۷ ).

بابر دلته د یوه زیارت د ورانولو پیښه بیانوی او لیکی چې( په تیرو دیر شو یا څلویښتو کلونو کې یوه ګمراه قلندر چې شهباز نومیده یو شمیر یوسفزایي او دلزاک له لاری ایستلی وو.دده زیارت د مقام د غره د یوی غونډۍ په سر چې په شاوخوا ځمکو ورسپره وه، واقع و. ما فکر وکړ چې دا ګمراه قلندر څوک دی چې زیارت یي پداسی آزاده فضا کی واقع دی. امر می وکړ چې دا زیارت ړنګ او لوټه لوټه شی.دا ځای دومره ښکلی و چې زموږ یو څه وخت هلته کښیناستو او معجون مو وخوړل. ) (مخ ۳۷۷ )

بابر پدی پسی یو ځل بیا هندوستان ته ور اوړي، خو هلته له یوی میاشتی نه زیات نه پاتی کیږی او د کال **۱۵۱۹** د مارچ به دیارلسم بیرته کابل ته خوځیږي. کله چې د مارچ په شپږویشتم بګرام(پښور ) ته رسیږي، هلته ددلزاکو پښتنو له مشرانو سره بیا لیدنه کتنه کویږ دی پدی بارهکی لیکی چې ( پدی ځای کی ددلزاکو د شپږتنو مشرانو هر یوه ته سل سل مثقاله سپین زر، جامی، دری غویي او یوه ګامیښه چې په هندوستان کی لاس ته راغلی وو، ورکړل شول ددی خلکو ملکان بوخان او موسی وو. نوروته مو د هر یوه له شان سره سم پیسی، ټوکران یو یو غویي او یوه ګامیښه ورکړل کله چې سباته په علی مسجد کې پیاده شوو، یو یعقوت خیل دلزاک افغان چې معروف نومیده لس پسونه او میږی، دوباره وریژی او اته لویي د خایدک چکی د سوغات په توګه راکړی. ) (مخ ص ۳۹۴ )

بابر د اپریل په سر کی بیرته کابل ته رسیږی او هلته د مې د میاشتی په وروستیو وختو کې، د یوسفزیو له مشرانو سره د لیدنو کتنو یادونه کوي او لیکی چې ( ددوشنبي په ورځ د میاشتی په درویشتم ملک شاه منصور یوسفزایي له شپږ اوو تنو نورو یوسفزایو مشرانو سره له سواد نه زما خدمت ته راغلل ددوشنبی په ورځ د جمادی الثانی په اول د یوسفزایو ملکانو ته چې د شاه منصور په مشري راغلی وو. خلعتونه ورکړل شول ملک شاه منصور ته یوه اوږده دوریښمو چپن او یوه جیبه دهغی له تنیو سره ورکړل شوه. یوه بل ملک ته یوه چپن چې لستونی یې دوریښمو وو ورکړل شوه او شپږو نورو ته وریښمینی چپنی ورکړل شوې. ټول مو رخصت کړلږ دې موافقي ته سره ورسیدو چې دوی به په سودا کې له ابوهانه پورته مداخله نه کوي او د هغه ځای ټول بزګربه له خپل منځ نه باسی او همداغه راز به د باجوړ او سواد افغان بزګر د خره په بار شپږ زره باره وریژي [بابر] ته د مالیي په توګه ورکوی. ) (مخونه ۴۰۰-۳۹۹ ). د جولای په اوه ویشتم، بابر د ګردیز د سیمې په پتنو له دې امله د یرغل نیت کوي چې وایی (د ګردیز د سرحد عبدالرحمن افغانانو، نه باج د قناعت وړو اونه یې سلوک، او کاروانونو ته یې هم تاوان رساوه. درجب په نهمه ویشتم د چهارشنبی په ورځ، پدی نیت وروخوځېدو چې یرغل پرې وکړو.....یرغل پیل شو یوه ډله [جنګی میړونه] د ګردیز جنوب شرق ته،د کرماش د غرونو په لور ولاړل د مرکز چپنې خواته لاړښودنه خسرو میرزا ته ور په غاړه وه. شاته یې سید علی روان و. اکثره پوځ د ګردیز رق ته یوې درې ته ور پورته شو. شاته یې د سید قاسم دریان، میرشاه قو چین، قیام(اردوشاه بېګ؟) هندوبیګ، قتلق قدم او حسین میړونه ورروان شول. څرنګه چې اکثره پوځ درې ته ور پورته شوی و، زه هم په یو څه فاصله پسې وروخوځېدم. ددرې خلک به هرومرو ډېر پورته وو او کوم [جنګی میړونه] چې ور روان شوي وو، اسونه یې له پښو ولوېدل خو هیڅ لاس ته ورنه غلل. یو شمېر، څلویښت پنځوس تنه، افغانان پیاده په اواره کې راښکاره ول. کوم عسکر چې د پوځ شاته روان وو، پسې ورغلل.

یو قاصد ماته راولیږل شو او زه سمد ستی په بېړه ور روان شوم. حسن حسین یکی یو ازې په حماقت او بې فکرۍ خپل اس ور خوشې کړ. منځ ته یې ورننوت او توره یې پرې را واېسته. هغوی یې اس وویشته او دی یې را وغورځاوه. کله چې پورته کېده [ یوه افغان] ګوزار پرې وکړ او را ویې پرزاوه. په چړو یې غار غار او ټوټه ټوټه کړ. نور [ جنګې میړونه] کرار ورته ولاړ وو او هیڅ مرسته یې ورسره ونه کړه. ماچه دا خبره واورېد نور هم چټک شوم او ځینې د کور سړي او سر تېري مې د ګدای تغای، پاینده محمد قبلان، ابو الحسن وسله ساتونکی او مومن اتاکه په مشرۍ پسې ورخوشې کړل. مقیم اتاکه لومړی شخص و چې یو افغان را وپرزاوه. سر یې ورنه پرې کړ او را یې ووړ. ابو الحسن... دافغانانو په مخکې ودرېد. اس یې پسې ورخوشې کړ. په یوه یې ګوزار وکړ. راچپه یې کړ. سر یې ورنه غوڅ کړ او را یې ووړ...دا څلویښت پنځوس تنه افغانان ټول په تورو یا غشو راچپه او ټوټې ټوټې شول. وروسته له دې چې ټول یې فیصله شول، موږ په شنه فصل کې کوز شوو او امر وو چې[د افغانانو] له سرونو نه دې څلې جوړ شي...کوم عسکر چې کرماش ته ولاړل، میږې او پسونه او غنایم یې ورسره راوړل. یوله دغو عسکرونه بابا قاشقه مغول ؤ. یوه افغان توره ورپسې راوایسته. دی کرار په ځای ودرېد غشی یې ورته برابر کړ. ګوزار یې پرې وکړ او راچپه کړ. ) (مخونه ۴۰۴-۴۰۳ ). بابر د همدې کال د سپټمبر په اتم دیوسفزو دلاندې کولو په نیت خوځېږي کله چې سلطان پورنه وړاندې اوړي، یوځل بیا ددلزاکو له مشرانو سره لید نه کتنه کوي. بابر خپله وایی چې( سلطان پورنه وړاندې کوز شوو. په همدې ورځ ددلزاکو مشران چې ملکان یې بوخان او موسی وو ، راغلل. زما نقشه داوه چې د سواد یوسفزایی وټکوم. خودې مشرانو راتهوویل چې په اشنغر کې ډېر لوی ولس ژوند کوي او ډېرې زیاتې غلې لری. دوی ډېر ټینګار وکړ چې اشنغر ته ولاړ شو. له مشورې نه وروسته فیصله وشوه چې څرنګه چې ویل کیږی چې په اشنغر کې ډېرې غلې دي، نو د هغه ځای په افغانانو باید یرغل وشي. د اشنغر او پرشاور د کلاوو خلک باید سم کړی شی او د غلو او دانو یوه برخه باید په [دغو کلاوو کې] وساتل شی) (مخونه ۴۱۰-۴۰۹ ).

( سبا سهار د خیبر د کوتل په بیخ کې کوز شوو........[بل سبا] د خیبر له درې نه تېر او په علی مجد کې کوز شوو..... [بله ورځ] مو چې ځرو خبر راکړ چې افغانان له موږ نه خبر شوي او په تیښته کې دي. وړاندی ولاړو د سواد له سیند نه تیر او د افغانانو په فصلونو کې کوز شوو.[خو په کومه اندازه غله چې موږ ته ویل شوې وه] د هغی نیمایی څه چې څلورمه برخه هم هلته نه وه.....هغه دلزاک افغانان چې موږ یې [دې یرغل ته] وروبللو وشرمېدل....سبا ته د سواد ، د سیند له غاړې وخوځېدو.د کابل له سیند نه تېر او کوز شوو [هلته مو ]...فیصله وکړه چې باید په هغو افریدو افغانانو چې سلطان بایزید یې یادونه وکړه، یرغل وی. د پراور کلا باید ددوی د مالونو او غلو

ډکه شي او يو څوک يې د ساتلو دپاره وګومارل شي. ) (مخونه ۴۱۲-۴۱۱ ).
بابر داکتوبر په دوهم له خيبر نه اوړي او کابل ته د بيرته تګ په لاره کې په خضر خېلو پښتنو يرغل کوي او خپله دې يرغل دليل داسې بيانوي چې(خضر خېلو ډير بدبد کارونه کړيوو. کله به چې لښکر تلو راتلو، [ خظر خېلو به د لښکر ] په وروسته پاتې او هغو عسکرو ګوزارونه کول چې ځانته به کوز شوي وو او اسونه به يې ورنه اخيستل. ځکه نو دا يو روا او په ځای کار ښکارېده چې [خضر خېلو ته ] سزا ورکړل شي. په همدې نيت، سپېده داغ [د خيبر] د کوتل له بېخ نه روان شوو. د غرمې ډوډۍ مو په ده غلامان (باسول ) کې وخوړه. وروسته له دې چې اسونه مو ماړه کړل، د ماسپښين د لمانځه په وخت کې بيا وخوځيدو. مو حسين وسله وال کابل ته واستول شو چې هلته ټول خضر خيل بندي کړي او ددارايي حساب يې ماته راکړي. موږ ترنيمې شپې مزل وکړ. دا معلومه وه چې خضر خېل له بهار (ويهاره ) او مچګرام نه ترکړاسو پورې پراته دي [ داکتوبر په څلورم] چې سپېده داغ نه پخوا ورسېدو، يرغل پيل و. د خضر خېلو اکثره مالونه او کوچنيان د ښکر لاس ته ورغلل. سبا ته مو په قيلاغو کې واړول..وزيرو افغانانو چې هيڅکله يې سم باج نه و ورکړي او [ په وزيرو باندې] حملې وېرولي وو، درې سوه پسونه او ميږې راته راوستل.سبانه بل سبا د شمو خېلو او خيريلچی افغانانو مشران راغلل. دلزاکو افغانانو هغوی ته ښېنه وغوښته او موږ هم وښنل. اسيران مو يې خوشې کړل. څلور زره پسونه او ميږې مو باج پرې کېښود. مشرانو ته مو يې چپنې ورکړې. محصلان مو وټاکل او ومو ليږل چې ميږی او پسونه راټول کړي. ) (مخ ۴۱۳ )
د پښتنو په باره کې د بابر متفرقې يادونې:
بابر د پښتنو په باره کې يو لړ متفرقې يادونې هم کړيدي. موږ دا يادونې دلته په جلا ډول ثبتوو. کله چې بابر د کابل د بېلو بېلو طايفو په باره کې غږيږي ړايی( تهر په اطرافو.....او کليو کې پشه يی، پراچی، تاجک، او افغانی قبايل او سيږي....جنوب ته د افغانی قبايلو ځايونه دي....په کابل کې يوولس دولس طبې ويل کيږي: عربی، فارسی،ترکی، مغولی، هندی،افغانی،پشه يی، پراچی، برکی او لغمانی.....[د لغمان په تومانونو کې] تر ټولو نه لوی ننګهار دی چې کله کله په تاريخونو کې نګه رهار ليکل شوی دی. ددا روغه ځای يې په ادينه پور کې دی چې د کابل شرق ته په يوه ډېر بد او خراب سرک پروت دی. ترکوم وخته يې چې[ ددې سرک] په خواکې ابادي نه وه خيريلچی...او نورو افغانانو به شکاوه. ) (مخونه ۲۰۸-۲۰۷ ).
کله چې بابر د غزنی په باره کې غږيږی ليکی چې(د غزنی په سيمه کې هزاره او افغانان ژوند کوي....خلک يې حنفی مذهبه او چندی مسلمان دي. ډېر يې درې مياشتې روزه نيسی. ) (مخ ۲۱۸ )
بيا ليکی: ( په کوم کال مې چې کابل او غزنی ونيول، په کوهاټ، بنو او د افغانانو په ځمکو مې يرغل وکړ او ددوکی. او آب ايستاده له لارې غزنی ته ولاړم ) (مخ ۲۱۸ )

يو بل ځای دبرمل په باره کې ليکی چې( برمل يوبل تومان او نسبتاً خوار ځای دی. خو منې يې چې هندوستان ته ليږل کېږي، بدي نه دي. د شيخ محمد سلمان اولاده شيخ زاده ګان چې په هندوستان کې يې د افغانانو په دور کې ډېر قدر لاره، د همدې ځای وو ). (مخ۲۲۰ ) بيا وايی چې ( بنګښ يوبل تومان دی. شاوخوا يې ټول افغانان داړه ماران، لکه خوګيانی، خيريلچی، توری او لندړ [ غالباً اندړ ]پراته دي. څرنګه چې [ داتومان ]له لارې نه چپ پروت دی، خلک يې ماليه نه ورکوي. خو ددې فرصت لانه دی پيدا شوی چې تابع يې کړم....انشاءالله، کله چې موقع پيدا کړم هرومرو به ددغو بنګښو غلو چاره وکړم. ) (مخ ۲۲۰ )

يوبل ځای کله چې د کابل د قبايلو په باره کې غږيږي ليکی چې( د غسې چې د خراسان په سيمه کې د ترکانو او مغولو اقوام( ايماق ) ژوند کوي همداسې په کابل کې هزاره او افغانان ژوند کوي. ) (مخ۲۲۱ ) کله چې د کال ۱۵۰۷ د حالاتو په باره کې غږيږي، په اليشنګ او الينګار کې د خپلو دوو حاکمانو د سلوک ديادونې په لړ کې وايی هغوی ټول ژمی د [ ناصر ميرزا ]د شربو او ساعت تېرۍ ملګريو و. دغه راز دوی ددې ځای په ترکلانو افغانانو هم يرغل وکړ. دتودوخی له رارسېدلو سره ميرزا د هغو بهرنيو قبايلو اوډلو په کورنيو حمله وکړه چې ژمی يې په ننګنهار او لمغاناتو کې تېراوه او هغوی يې لکه ميږو غوندې له خپلو کډو سره مخې ته واچولې او د باران تر سينده يې ورسول. ) (۲۴۱ ) ( دا ترکلانی په کال ۹۲۲ هجری کې په مندراوړ کې پراته وو ،مخ ۲۴۲ حاشيه۱ ) کله چې بابر د کال ۱۵۰۷ د پېښو د بيان په لړ کې د خپل يوه افسر، باقی چغانيان، دوژل کېدو په نسبت د هغه د حالاتو په باره کې غږيږي ليکی چې( يوڅو تنو ساتونکو يې له خيبر نه تېر کړ او بېرته راغلل. هغه د ګګيانو له يوه کاروان سره ملګری شو او نيلاب ته ورتېر شو.........دريا خان ديار حسين زوی چې پدې وخت کې [ حسن ابدال ته نږدې ] کچه کوټ کې و، زما د هغه فرمان په اساس چې په کوهاټ کې مې ورکړی و، يو شمېر دلزاک او يوسفزايی افغانان....راټول کړی وو: ) (مخ ۲۵۰ ) بيا کله چې د کال ۱۵۱۹ په فبروری کې له اباسيند نه پورې وزي او بهيرې ته چې اوس د پنجاب دشاه پور په ايالت کې واقع ده، رسيږي وايی چې ددغه ځای( د افغانانو يو شمېر مشران مې له خپل يوه سردار، لنګر خان سره يوځای د بهيرې خلکو ته ورولېږل چې د لاسا يې کړي. ) (۳۸۱ ) يو ځل بيا د بهيری د حالاتو په ارتباط ليکی چې( موږ لانه وو روان شوی چې يو شمېر هندوستانيان او افغانان سره ټول شول....او د هندوبيګ په خلاف يې اقدام وکړ.....هندوبيګ مقاومت ونه شو کړی....کابل ته راغی (۳۹۹ )

## د پښتو ژبې د جملې جوړښت

د جملې جوړښت او رغنده توکونه (اجزا ):د جملې د پېژندنې په باب مود مخه ليکنو کې زياتې خبرې کړې دي دلته مونږ غواړو چې د جملې د جوړښت او ساختماني توکونو په باب څه و وايو. زمونږ مطلب د جملې هغه ساختمان دی چې يوه بشپړه جمله د کومو برخو او توکونو څخه رغيدلې ده او ددغو برخو او اجزاو د څومره والي له مخې د جملې ترکيب، جوړښت، ډولونه څرګنديږي. په يوې جملې کې د کلمو ، مورفيمونو اندازه او شمير سره توپير لري په دې معنا چې يوه جمله له دوويا زياتو کلمو څخه جوړه شوې ده.

د يوې جملې په جوړښت کې دغه لاندې توکونه برخه لري:

1- اصلی (خپلواک ) توکونه: په دې برخه کې ټول ازاد او خپلواک مورفيمونه (نومونه دا شياو نومونه، صفتونه، ضميرونه، عددونه (شمير نومونه ) فعلونه (بشپړ- مرستيال ) يا ساده اشتقاقي، ترکيبي، قيدونه (اصلي، غير اصلي ) راځي، دلته ښايي و وايو چې دغه توکونه مختلفو سوالونو ته په ځانګړي توګه ځواب ورکوي يعنی د موضوع څرنګوالی، څومره والی، فعاليت او داسې نور مفاهيم نوموي او يا ورته اشاره کوي او يا خو هم ګرامري لغوي معنا ښندي.

2- مرستيال (کومکی ) توکونه: په ځانګړي توګه د جملې خپلواک توکونه نه دي ځکه دغه ناخپلواک توکي په جلا توګه سوالونو ته ځواب نه ورکوي او د کوم شي نومونه نه ده يوازې په جمله کې ګرامري معنا رسوي. مرستيال- کومکي توکونه ورته ځکه ويلی شي چې د جملې د اصلي توکونو ، ترکيبونو او جملو ترمنځ ارتباط او تړون ټينګوي، مرستيال (کومکی ) (نه اوړيدونکي ) (نه ګردانيدونکي ) توکونه دي چې په دې کې ادات (ربط، عطف، پيشينې او پسينې ) او داسې نور راځي. د څرګندتيا له پاره دغه لاندې بېلګه ګورو:

د خلکو سره مرسته په کارده. دغه جمله په دې توګه تجزيه کوو: د ، خلکو ، سره، مرسته، په، کار، ده.

ګورو چې دغه جمله له اووتوکونو څخه جوړه ده مګر په دې کې څلور خپلواک (اصلي) او نور ناخپلواک (مرستيال ) توکي دي چې په دې توګه دغه جمله په لاندنيو برخو سره بېلوو:

د خلکو سره/ مرسته په کار ده.

په دې جمله کې (د خلکو سره ) د مسند اليه (مبتدا ) بڼه لري چې لومړۍ برخه ده او (مرسته په کار ده ) خبر (مسند ) او (ده ) د (اسناد ) برخه ګڼل کيږي.

چې په مجموع کې (مرسته په کار ده ) د جملې دوهمه برخه (خبر- مسند ) دی. یا دا بل مثال: **هغوي** د خلکو سره مرسته کوي.

په دې جملې کې هغوي (**فاعل**) (د خلکو سره ) **معیتي قید** ) (مرسته د **فعل متمم**) (کوي) **فعل** او په مجموع کې (هغوي مبتداء او د خلکو سره مرسته کوي (خبر) دی.
په پښتو ژبه کې داسې مثالونه هم لرو ، چې د کلمو اندازه او شمېر یې د جملې د اجزاو سره برابر وي لکه: لیونۍ راغله.

لومړۍ برخه لیونۍ (**فاعل**) دوهمه برخه راغله (**فعل**) دی.
په پښتو ژبه کې کلمې چې خپلو اکې معناګانې ولري د خپل نحوي دریځ له مخې د جملې بېلا بېلې اجزاوې هم جوړ وي لکه:

1- کابل د افغانستان مرکز دی.
2- مونږ په کابل کې او سیزو
3- کابل په یوه ښکلي ښار بدلوو
4- دغه د کابل ښار دی.
5- دغه لوی ښار کابل دی
6- مونږ کابل ته ځو.
دلته په دغو جملو کې د کابل کلمه په ترتیب سره ګورو چې، کابل 1- مسند الیه 2- ظرف مکان 3- مغفول 4- مصاف الیه 5- خبر 6- غیر مستقیم مفعول یا (د تم ځای حالت) په توګه راغلی دی.
د پورتني مطلب څخه دا نتیجه ترلاسه کوو ، چې په پښتو ژبه کې د جملې اجزا د دوو څخه نیولې تر زیاتو تو کونو پورې رسیږي په همدغه اساس ساده (لنډه) او منکشفې (ارته) جملې سره بېلیږي.

بیلګه: لمر راوخوت، ساړه دي، پسرلی شو. ) دا لنډې یا دوه توکیزې جملې دي، مګر که ووایو: زه او زما ورور د خپلو او خپلوانو سره د هیواد ختیځې برخې ته تللي وو. نو بیا دا یوه اوږده (منکشقه)(1 ) جمله بلله کیږي. په دې توګه مونږ په پښتو ژبه کې د جملې اساسي برخې په مبتدا (مسند الیه، فاعل) او خبر (مسند ، فعل) باندې بېلوو او په دې کې د جملې اصلي (لومړۍ درجه) او فرعي (دوهمه درجه ) غړي په لاندې توګه ښودل کیږي.

د جملې رغنده ټوکونه




د فعل او فاعل متعلقات او مربوطات:

1- د مهال (زمانی) قید 2- (د ځای (مکانی) قید ) 3- د حالت او وضعیت قید او مقیاس، اندازه ده چې د فاعل، مفعول، فعل حالت او کیفیت ښیي. 4- پيل ځای چې د فعل د شروع کیدلو مبدا ورڅخه معلومیږي. 5- د مقصد سبب او کیفیت قید چې د فعل د کیدلو انتها علت سره د مقصد او ځای ښکاره کوي. 6- ملتیا چې د فاعل او مفعول ملتیا او معیت څرګندوي.
1-2-3 مطلب د قیدونو په واسطه ښودل کیږي او 4-5-6 مطلب د ارتباطي اداتو په واسطه ښودل کیږي.

الف: د جملې اساسي برخې یا د جملې لومړۍ درجه غړي:
دا یوه څرګنده خبره ده، چې یوه جمله برسېره پر فرعي توکونو دوې اساسي برخې لري چې د دغو له پیوستون څخه بشپړ مطلب لاس ته راځي.
مبتدا او خبر د جملې مهمې برخې ګڼلی شوي دي او دا وړه برخې د یوې جملې زړي جوړوي دا ځکه چې مبتدا او خبر پرته له فرعي اجزاو څخه هم یوه پوره او ځانګړې جمله جوړ ولای شي.
لکه: روښنايي راروانه ده، هیواد پرمختګ کوي. هلکان راغلل. شپه تېره شوه.

لیدل کیږي چې په هرې جملې کې د مسند الیه او مسند برخې په خپلو اکه او مستقله توګه راغلي او په دغو جملو کې نورو اجزاوته کومه اړتیا نه لیدله کیږي.
یادونه: مونږ د پښتو او فارسي ژبو د ځینو ګرامرونو د مطالعې څخه د مسند الیه فاعل – مبتدا او مسند ، فعل، خبر د اصطلاحګانو سره مخامخ شوي یو لکه د محمد ګل مومند (پښتو ژبې لیاره 1317 ) د پوهاند رښتین پښتو ګرامر د محمد اعظم ایازي (د پښتو قاعدي 1328 ) د عظیم شاه خیال (صرف ونحو پښتو ) ، د پوهاند الهام (روش جدید در تحقیق دستور زبان دري ) همدارنګه د پرویز خانلري په (دستور زبان فارسي ) کې د نهاد –ګذاره په نامو سره راغلي دي.

په هر حال مطلب په کې ټاکلې او معینې برخې دي چې مخکې پرې غږیدلي یو. په جمله کې دغه دوې اساسي برخې په اسمي او فعلي غونډونو بیلیږي چې اسمي برخې ته یې (مسند الیه، فاعل، مبتدا ) او فعلي برخې ته (مسند ، فعل، خبر ) وایي.
په پښتو ژبه کې فعلي غونډونه د (مسند ، فعل) په توګه او اسمي غونډونه هم د مسند الیه په توګه او هم د مسند په توګه راتلای شي چې دا بیا په اسمي او فعلي جملو کې دغه موضوع ښه څرګندیدای شي.

## لرواو بر او نورو پښتو پاڼوته

د يوې کره ليکنۍ پښتو پر وړاندې سمتي او سياسي سنګر !

تر نورو مې د((لراوبر )) اوبيانې له چلوونکي ډېره ګيله په دې راځي چې که څه هم له همدغه
ښکلي نامه سره يې((ښنوا )) پاڼه هماغوسمتپالوته ور پرېښووه، خو بيايې هم، په
ناځانخبري(ناآګاهانه) ډول، د سنګر په تودونه کې تر ګردو زياته ونډه واخېسته.
کاشکې د سنګر بنسټ اېښوونکي او نورو همسمتو لنډ اندو يې يوه لږه کۍ هومره پښتنې مېړانه
درلودای چې ترپايه يې راسره په خپلو آرو نومونو ډغرې وهلای، خو داسې راڅرګند ېږي چې نه
يوازې علمي مېړانه نه لري، بلکې پښتني دا هم نه لري !
تر ښاغلي هوتک راوروسته دې د نيم اکاډميک افق او ورسره د خواتي نومي سياسي بالکي
کورلا ودان وي چې په خپلو آرو نومونو يې د ټولڅرګندو جلا دانو په پلمه ښسروبوله سياسي
تورونه راوتپل او له غاښ ماتوونکي غبرګو نو سره مخامخ شول. وروسته بل جلاد پلوي بيا له
ډاره د((پښتون افغان )) په بدل نامه، دڅاخبره((هغه څه وخوړل چې نور يې نه خوري )) !

او دادی، داځل هماغه کوم يوه د خپلې((موسکا )) لوراو ياهم کومې نيملوستې سمتپالې
خورکې په دغه درغلي نامه راودانګل او هغه بياهم د((لرواوبر )) له کړکۍ څخه !
ښايي ګران چلوونکي يې دارسنيز يا ژورنالېستيک دود دستور رامخته کړي
چې ورسره ورسره يې د وو پښتو مينو دفاعيې هم خپرې کړې دي، خو زه ځنې دا پوښتم چې که د
بدل او نابدل نامه توپير ورته ګران وو ، نو دکوم ژورنالېستيکي دود يا قانون له مخې يې له قلمي
سپېڅلتيا څخه دا دومره لرې او ناباندې سپکې سپورې ورخپرولې، يا ديوې عادي ليکنې
غوندې يې د تبصرې مخ ورپرانېست؟

ما د استاد مورګنستيرن د آريوهې پر دويم چاپ د انګرېز پښتو پوه او وښېځي پوه اېلفنباين د
سريزې ژباړه په دې نيت و نمات د پاڼو له لارې خپره کړه چې د نوې پښتوژبپوهنې دغه
((ساينتېفيکه )) برخه څومره ارزښتمنه اوګرانه ده او ولې يې پر بيا کتنه او بشپړونه 76 کاله کار
شوی دی. په ترڅ کې مې دژبپوهنې استادانو او مينه والو ته دا ډاډ ورکړ چې تر پښويې(ګرامر )،
وييپوهنې، ليکلارې او د ژبپوهنې په رڼاکې تر شعرپوهنې او دپښتو او پښتنو
اتنولېنګوېستيکي تاريخ وروسته د اړوند درسي کتاب بشپړونې ته هم اوړه ورکړم؛ ان همدا تېر
پسرلی مې د کابل، خوست او ننګرهار په شپږګونو پوهنتونو او ښوونيزو څانګو کې د لکچرونو

پر مهال پر ټولو دازېرې وکړ چې د نابغه ناروېژي آريانپوهاند او پښتو پوهاند استاد مورګنستيرن د تاريخي اثر دنوي چاپ په اسره دېرش کلن ځنډېدلی کار به سم له سمونې له سره راپيلوم.

او موسکاخان يا موسکاجانه راګوابنې او د هماغه جلادپلوو پر لاروي دنورو انساني ضد سپکو سپورو ، تورونو پيغورونو په لړکې مې نيمه پېړييزې علمي= فرهنګي منډې ترنډې او برياوې د يوه پښتني ضد((پلان ) ) زېږنده بولي. بيا راته لا دانصبحت کوي چې اوس د دې((خاينانه ) ) کارونو وخت نه دی، کتابونه ليکل په کار دي !
سمتي او سياسي تعصب او کرکې يې سدوسول دومره ور زمولللي چې په دې انفارماتيکي او جنېتيکي انقلابي پېر کې يو ستاندرد ګرامر او معياري ليکلار پر پښتو نه لوروي او پکې د علمي کتابونو وړاندېز کوي ! زه نه پوهېږم چې څوک بهرنی دوست اشنا ترې پښتوګرامر يا يې رېفرېنس وغواړي، څه ځواب به ورکوي؟

په دوديزو پوهانو کې خو له استاد رښتين پرته بل چا کښلی نه دی او هغه هم پر زړه لاره روده. زماد بشپړاکاډېميک هغه ترڅنګه داروابناد ترې ژبښود (خودآموز ) ډوله هغه هم چې له بربرې رابسن سره يې په ګډه کښلې، هم د چادرد دومره در ملولای نه شي !
د نورو سمتپالو په څېر راته موسکاهم ژبنی سوچوالی له دې دک دليل سره د پزې پېزوان کړی چې د استاد علامه حبيبي پرې هم سر نه خلاصېده. زه به ترې دا وپوښتم چې ايا هغه د نورو نويو پوهنو(ټولنپوهنې، لرغونپوهنې، ساپوهنې، وګړپوهنې...) د څانګوالو پر ژبه پوهېده؟
زما ليکنی ژبه، يو خواد نورو علمي=معياري ژبو غوندې دځلورګونې پانګې او بلخوا له دومره ارتې او بيرتې څانګيزې نومونپوهنې(ترميالوجی ) سره تړاو لري چې دوديزه = عربي هغه ورسره له ځومره والي او څرنګوالي(کمي او کيفي) پلوه نه سيالي کولای شي او نه ورسره اړخ لګولای شي. هماغسې چې هغه علامه استاد او نورو علامه وو ته (فونيم، مورفيم، الوفون، الومورف، مورفو-فونيم،فونولوجي، فونېتيکس، فونيميکس،ارګاتيف، پرېپو زېشن، پوستپوزېشن، امبي= پوزېشن ، نومېناتيف، ابلاتيف اسېمبلېشن، دېسېمبلېشن، ترانسفورمېشنل= جنراتيف ګرامر... ) ناپېژندويه ول، نوي رغولي پښتو انډولونه ورته هم نابومه ول. دوديز- عربي هغه خو د ((فاعل و مفعول ) ) ترڅنګه حروف مغيره يا جاره،جارو مجرور، مجهول و معلوم پخپله عربي ژبپوهانو وخته له چلنده ابستلي دي !
حال داچې موسکا راته ((اېتېمولوجيکل وېکابولري ) ) منل شوي پښتو انډول د سپکو سپورو پلمه کړی، بې له دې چې دومره پوهه ولري، دا يوازې د ژبپوهنې په څانګوالو او شاګردانو اړه

لري. د ګردو پرمختللو ژبو او ان د راتپلې پارسي ژبې د لکونو علمي، تخنيکي او فرهنګي ترمونو په لړکې د ژبپوهنې دا هم په ټولو ويونکيو او ليکونکيو اړه نه لري. ژبپوهانو يې يو((واژه )) د ارکاييزم په پلمه را ژوندی کړی او بيا يې پربنسټ پرېمانه رغاونې(واژه شناسي،واژګان، واژګاني، دانشواژه، واژ، تکواژه، واج، واجګونه، واجشناسي... ) کړې چې تراوسه يې ما نه په منځنۍ پارسي(پهلوي ) متنونو او ډېکشنريو کې ځرک لګولی او نه د زړې (هخامنشي ) پارسۍ په هغو کې، بې له دې چې کوم ايراني، تاجيکي يا دري والا پرې نيوکه وکړي.

پښتو((ويی )) چې لا تر اوسه په يونيم ګړدود کې د قول، لغت او کلمې په مانا ژوندی پاتې دی او د کلاسيک ادب د ويناوالو په لړ کې احمد شاه بابا ان د طيبې کلمې (دا ويی د تنعم دی، لااله الله) په مانا هم کارولی دی، زموږ جهل و جنګ ځپلو پښتنو ته((ببو )) ښکاري. وييپوهنه، وييپانګه، وييزېرمه... خو لا د سمت و سياست پر لېونو لړمۍ راخېژوي !
بله ناخبري او ناګاري يې دا چې لا تراوسه د نوې او دوديزې ژبپوهنې ترمنځ او بيا ورسره د ادبپوهنې، شعروشاعرۍ او ليکنو څېړنو توپير نه شي کولای او په دې يې رانغوي چې نن سبا يې يوازې زه د ژبني ساينس ټيکه وال نه يم او هسې ببځايه ساتې باتې وهم، بلکې نورهم ډېر ول او لا شته؛ ياداچې د هېواد د پرله پسې((پرزنايز کېدو )) مخنيوي لپاره زما تر رغنده ژبنۍ= فرهنګي سيالۍ بله اغېزمنه لاره روده ګرد سره په لرليد کې نه راځي !
د نورو تورونو او پيغورونو په لړ کې د سنګروالو دا تور هم بې سروبوله دی چې ګوندې د متنپوهانو او نورو دوديزو ليکوالو برخلاف د پخوانو استادانو څېړنې او څېړندودونه، هغه هم د((ژبپوهنې )) په تړاو نه منم، نوخدای مکړه، دايې د شخصيتونو سپکاوی دی !
هو ، لکه څنګه چې سوکرات،اپلاتون، ارستو... علمي پاتوړو ته ټوله علمي نړۍ له تېرمهال پلوه درناوی لري، ما هم له تاريخي پلوه د خپلو پخوانو پوهانو او استادانو او ورسره ورسره ليکنو څېړنو ته تر بل هرچا ډېر درناوی درلودلی اولرم يې،په تېره استاد حبيبي اوليکنو هستونو او په ځانګړې ډول يې تاريخي اثارو ته.

هغه د نورو په توپير له ما او نور نوي اکادېميک پښت سره دومره اړپېچ نه لاره او بيا يې دا پراخنظري چې د سمتپالو برخلاف يې د کندهاري ګړدود پرځای ان د لسمو لمريزو کلو راهيسې د ټولو ګړدودو د يوه معياري غورچاڼ ټينګ پلوي وو او په همدې موخه يې د اړوندو غونډو مشري کوله.

د اطلاعاتو او کولتور د سلاکار په توګه يې رانه وغوښتل چې تازه بشپړه کړې ((وييپوهنه )) د کالنۍ جايزې لپاره وروړم. د ژوند په وروستيو ورځو کې تر بل هر وخته زيات پوښتنې ته ورتلم او بهرته دا ستونې اودرملنې لپاره مې له کند هاري وزير ((مجيد سربلند )) سره تنۍ و شلولې. خو ماچې تر څو دوکتور نجيب اله ور واسطه کاوه، کارمليانو د ((پوهنتون =دانشګاه )) پر سر ناڅاپه د مېلمه استاد په پلمه دېموکرا تيک المان ته را تبعيد کړم او مياشت دوې وروسته مې د اروانښاد استاد له((ويرنې )) سره استعفأنامه هم ور ولېږله !
که سمتپال او بيا جلاد پلوي سياستمردار له پښتو سره رښتينه خواخوږي لري او ورته زما پر پښتنې ضد((پلان ))، يا د موسکا په پاکستانۍ نومونه(( منصوبه )) خبردي، نو ولې په تور لګونه بسنه کوي؟

ولې د غويي له اوومې او اتمې، د مرغومې او تلې تر شپږمې او بيا دوويشتمې پورې دګردو سرو ،تورو او سپينو کودتاچيانو، جلادانو او جنګي جنايتکارانو په استازۍ، ما د هاګ نياوالۍ(دادګاه ) ته نه ورکاږي؛ يا لږترلږه د ژنيو هغې ته چې اړوند پوهنتون يې دغه کارته روزلی يم ! !؟

## پښتانه پخوا چېرې اوسېدل؟

پخواني ليکل شوي اسلامي آثار او اسناد له لسمې تر شپاړسمې ميلادي پېړۍ پورې، دهغې سيمې په بېلو بېلو برخو کې د پښتنو د هستوګنې يادونه کوي چې له آمونه تر اټکه، له هراته تر کشميره ، له کرمانه تر ملتانه او له چترال نه دعربو دبحيرې تر حدودو پورې امتداد لري. (۱) خو لومړي موږ په هغو سيمو کې د پښتنو په باره کې يادونې رااخلو چې دغزني،زابل،کابل، پکتيا او ننګرهار له ناوو او شاوخوا سيمو نه تر اباسينده پورې امتداد لري.

پښتانه په پکتيا او شاوخوا سيمو کې:

حدود العالم مناالمشرق الي المغفرت چې په کال ۳۷۲ هجري کې په فارسي ليکل شوي او دمؤلف نوم يې نه دي معلوم، د اسلامي دورې لومړني معلوم آقر دي چې پدې ځمکو کې دافغانانو دسکونت يادونه کوي. دالرغوني اثر دګرديز له شرچې نه وروسته، سمدستي پکتيا د سيمې يو کلي داسې معرفي کوي:

(سوال(۲ ) په غره کې يو آباد کلي دي او افغانان پکې هست دي. له دې ځايه تر حسينانه پورې لار ددوو غرونو تر منځ پرته ده...دا لار له مخاطرې او بيم نه ډکه ده. ) (۳ )

يو بل ډېر پخواني اثر چې په همدې حدودو ، غالباً، دپکتيا او پکتيکا په سيمو کې ، پښتنه ميشته ګڼي هغه د عبدالجبار عتبي مرګ( ۴۲۷ هجري ) تاريخ يميني دي دي. عتبي چې د سبکتګين او سلطان محمود دوکدارۍ وقايع يې تر کال ۴۱۲ هجري پورې ثبت کړي دي، يو ځاې داسې ليکي:

(ځنګه چې داورې ګرمي تېره شوه، سلطان دهغو افغاني طايفو دټکولو لپاره ور وووت چې په لوړو درو او خپلو غرنيو ټاټوبو کې اوسيدل او کله چې سلطان [محمود] دقنوج زاته وتي ؤ ، دهغه دملک په لمنو کې يې نارا مي پيدا کړې وه. ده [سلطان] وغوښتل چې په هغو [افغانانو] يرغل وکړي. مېنه يې ور ورانه کړي او له شرنه يې ځان خلاص کړي. له غزني نه پدې نامه ووت چې ګوندې کومه بله خواځي. خو يو ناڅاپه، په نوي[افغانانو] ورولوېده توره يې پرې را واېسته او يو عالم يې ورنه کړل. ) (۴ )

دا مطلب وروسته نورو مؤوخينو هم ثبت کړي دي. رشيدالدين فضل الله چې جامع التواريخ يې په کال ۷۰۴ هجري کې ليکلي دي او حمدالله قزويني، چې تاريخ ګزيده يې په کال ۷۳۰ هجري کې تأليف کړي دي، په پښتنو باندې دغزنوي سلطان محمود دا حمله تقريباً دعتبي په عباراتو بيان کړې ده. (۵ )

ابن اثير (۵۵۵-۶۳۰- هجري) په خپل معروف تاريخ(کامل) کې دکال ۴۰۹ هجري دپېښو دبيان په ترڅ کې دهغو پښتنو يادونه کوي چې له غزني نه بهر دهندوستان دلارې په شاوخواکې پراته دي او وايي چې غزنوي سلطان محمود يرغل پرې وکړ او ډېر يې ورنه ووژل. دي ليکي:

په همدې کال يمين الدوله هند ته دغزا دپاره روان شو.خپل پو ؟؟؟؟؟ مجهز او تيار کړ.... له غزني نه ووت او لومړي يې په لاره ؟؟؟؟؟؟؟وکړ چې دافغانانو چاره وکړي, افغانان کافران او وران کار ؟؟؟؟؟؟ دخپلو مېنو او غزني تر منځ دښتې او لارې يې وهلې. يمين الدوله ؟؟؟؟؟ وخوځېد آبادۍ يې وروراني کړې او مالونه يې ورنه ولجه کړل. [افغانانو] ډېر زيات مړه او اسير شول او مسلمانان يې ډېر مالونه په ولجه ورنه يووړل) (٦).

بلخي عنصري (مرگ: ۴۳۱ ) هم چې دسلطان محمود ددربار ملک اشعراءؤ ، په پښتنو باندې ددغه سلطان ديوه بل يرغل دبيان په ترڅ کې دپښتنو يادونه کوي او وايي:
شه گيتي زغزنين تاختن برد (٧).

بر افغانان وبر گبران کهبر ( ٨ ). دفارسي ژبې ځينې نور شاعران هم دغزنويانو په عصر کې دپټنو او دهغو دهيواد يادونه کوي او وايي چې غزنوي افسرانو يرغلونه پرې وکړل. مثلاً دغزنويانو دعصر ستر قصيده ليکونکي، مسعود سعد سلمان (۵۱۵-۴۴۸ ) دغزنويانو دعصر ديوه ستر بوځي سالار (علي خاص ) په ستاينه کې وايي:

سکسته گشت به تيغ تو لشکر کفار

خراب شد به سپاه تو کشور افغان (٩ ).

په يوه بله قصيده کې وايي:

گهي شتابان اندر آگه ميان غار توبي (١٠ ). د مسعود سعد دژوند ښځي زياته برخه ددوو غزنوي سلطانانو له عصر سره مصادفه ده. يو يې ابراهيم بن مسعود دي چې له کال ۴۵۰ نه تر کال ۴۹۲ هجري پورې يې سلطنت کړې اوبل دهغه زوي سلطان مسعود دي چې له کال ۴۹۲ نه تر کال ۵۰۹ هجري پورې يې واکداري کړې ده. (١١ ) نو دمسعود سعد ممدوح (علي خاص ) هم بايد دهمدې عصر يو پوځي سالار وي.

کله چې ابن اثير دکال ۵۰۸ هجري پېښې ليکي او هغه جگړې بيانوي چې دسلطان محمود کړوسيانو ، ارسلانشاه بن ابراهيم او بهرام شاه بن ابراهيم دسياسي قدرت په سرله يوه بل سره کړي دي، يو ځل بيا دپښتنو او دهغو دغرونو او ښارونو يادونه کوي.

ابن اثير ليکي کله چې اسلانشاه بيا دغزني دتخت دنيولو په نيت غزني ته ولاړ، هلته يوه مياشت پاتې شو او دخپل ورور بهرامشاه په لټه کې ؤ. خو کله چې خبر شو چې دسلطان سنجر پوځ دبهرامشاه ملاتړ ته ور روان دي، نو ارسلانشاه (تېښته له جنگ نه غوره وبلله. ځکه هغه پوهېد چې عسکر يې له سلطان سنجر نه ډېر زيات ډاريږي. داوغانانو (١٢ ) غرونو ته ولاړ او بهرامشاه او دسنجر عسکرو تعقيب کړ او په کومو ښارونو کې چې هغه [ارسلانشاه] اوېده ټول يې وران کړل او دهر ښار خلکو ته يې پيغام و استاو او تهديد يې کړل. (١٣ )

ابن اثیر وروسته په همدې سیمه کې دیوه خاص ښار، کرمان [کرمان] ( ۱۴ ) نوم اخلي او اوسېدونکي یې افغانان بولي. دی د کال **۵۴۷** هجري د پېښو د بیان په ترڅ کې د سلطان سنجر او غوریانو تر عنوان لاندې لیکي:

(علاءالدین حسین..........دغزني..........په ښار حمله وکړه. پدې وخت کې بهرامشاه بن ابراهیم بن محمود بن سبکتګین په غزني کې واداري کوله.ده [بهرامشاه] ونه شو کړی چې له علاءالدین سره ډغرې ووهي او له غزني نه د کرمان ښار ته چې د غزني او هند تر منځ واقع دی وتښتېد. د دغه ار اوسېدونکي یو قوم دی چې افغانان نومیږي. دا ښار هغه د کرمان په نامه معروف ولایت نه دی. ) (**۱۵** )

وروسته محمد قاسم په تاریخ فرشته کې د دغو پېښو په ارتباط لیکي: (بهرامشاه ټینګارونه شو کړی. له غزني نه کرمان ته ولاړ. دا کرمان هغه مشهور کرمان نه دی، بلکه د غزنین ، هند او افغان تر منځ یو ښار دی. (۱۶ )

محمد قاسم لیکي:

( بهرامشاه.......دبامیانو کلاته ننووت او په پای کې د سلطان سنجر په زور او مرسته بیا غزني ته راغی، ارسلانشاه افغانانو ته ور وتښتېدو . د سلطان سنجر لښکر ورپسې ورغی ویې نیو. تهرامشاه ته یې په لاس ورکړ او هغه وواژه ) (۱۷ )

فرشته دیوې بلې پېښې د بیان په ضمن کې هم داسې ښیي چې په کرمان او شاوخوا سیمو کې پښتانه هست دي، دی غزني ته د سلطان شهاب الدین د جنازې د وړلو د پېښې د بیان په ترڅ کې لیکي چې (خواجه مؤید املک د غور امیرانو ته ورغی او په کراره او دلایلو یې دا ورته څرګنده کړه چې باید د سیوران( ۱۸ ) او کرمان له لارې غزني ته ولاړ ي. [په لاره کې] دافغاني قبایلو او تراهیه کفارو له لاسه ډېر زیات وتزنېد. کله چې کرمان ته ورسېد تاج الدین یلدز د سلطان د تابوت مخې ته ور و ووت. ) (۱۹ )

د تونس معروف سیح ابن بطوطه هم په خپله سفرنامه کې د پکتیا په سیمه کې د پښتنو یادونه کوي. دی کله چې په **۱۳۳۳** میلادي کال کې هلته د کرماش (۲۰ ) په دره له پښتنو سره مخامخ کېږي. ابن بطوطه خپله دا پېښه داسې بیان کړې ده:

(څه کابل نه کرماش ته ولاړو. دا د دوو غرونو تر منځ یوه کلا ده او هلته افغانان لاړې وهي. له دې سیمې نه په جنګ او ګرېز تېر شوو. افغانان دغره په لمن کې وو او زموږ د غشو د ګزارونو له امله رانه ولاړل. موږ نخمین څلور زره اسونه لرل. څرنګه چې زه له اوښانو سره تلم نو ځکه له کاروان نه لرې پاتې وم. یو شمیر کاروانیان چې یو تعداد افغانان هم پکې وو له ما سره یو ځای تلل ) (۲۱ )

یو بل معتبر پخواني اثر چې پدې سیمو کې د پښتنو د سکونت یادونه کوي هغه ظفر نامه ده چې مولانا شرف الدین یزدي د ګوډ تیمور د جګړو او فتوحاتو په باره کې په کال **۸۲۹** هجري کې لیکلې ده. په ظفرنامه کې

دتيمور او دهغه دجرنيلانو دهغو يرغلونو په باره کې هم يو لړ مطالب ثبت شوي دي چې په کال ۸۰۰ او ۸۰۱ هجري کې يې، دپکتيا، بنو او کوهاټ دسيمو په پښتنو کړي دي.

څرنګه چې دا مطالب دپښتني ټولنې دتاريخي مطالعي په برخه کې د پوره اعتناوړ دي نو له دې امله يې موږ ټول په يو څه اختصار خو په داسې شکل دلته را اخيستي دي چې دمفهوم په لحاظ څه کمي پکې رانه شي. ( ۲۲ )

يزدي وايي چې پدې سيمو دتيمور اقدامات او عمليات وروسته له هغې ليدنې کتنې نه پيل شول چې په کابل کې دپکتيا دپښتنو يوه قومي مشر ور سره وکړه. مولانا ليکي کله چې تيمور هندوستان ته دتګ په لاره کې کابل ته ورسېد، هلته د افغانانو يو مشر، ملک محمد، دخپلو رعاياوو په ملګرتيا ورغي او عرض يې ورته وکړ چې د کرکس( ۲۳ ) د قبيلې مشر موسي او غاني، دده ورور، لشکر شاه او غاني چې دامير تيمور له بنده ګانو څخه ؤ وژلي دي دايرياب(۲۴ ) کلا يې ورانه کړې ده او ددوي اسباب او املاک يې په زور ورنه اخيستي دي.

دغه راز ملک محمد تيمور ته وويل چې موسي او غاني غلاوې کوي او لارې وهي او هيڅوک هم له دغو سيمو نه سلامت نه شي ورنه تېريدلی.ملک محمد تيمور ته وويل: (زه دمرګ له ويرې راتښتېدلی او ستا حضور ته راغلی يم ) کله چې تيمور د ملک محمد خبرې واوريدې سخت په غوسه شو او ورته ويې ويل: (ته ځان چېرته پټ کړه. زه غواړم چې موسي او غاني راوغواړم. که راغي غچ به دې ترې واخلم او که رانه غي نو تاته به لښکر در کړم چې دخپل ورور انتقام ترې واخلې. )

تيمور موسي او غاني ته پدې مفهوم يو فرمان ور ولېږه چې (تا داايرياب کلا ورانه کړې ده. داکلا دهند دلارې په سرواقع او ډېره مهمه ده. ته ځان په منډه راورسوه چې هغه ولايت تاته درکړم او کلا بېرته جوړه کړې. )

څنګه چې موسي او غاني ته فرمان ور ورسېد، په منډه يې ځان تيمور ته ور ورساو. تيمور موسي او غاني ډېر وغټاو او زر دوزي جامې، دزرو ملا وستني او توره او يو زين کړي اس يې له ډېرو نورو سوغاتونو سره ورکړ او ورته ويې ويل: ( ولاړ شه او د ارياب کلا بېرته جوړه کړه. کوشش وکړه چې ډېر ژر يې خلاصه کړې. )

تيمور درې زره مېړونه دخپل يوه جرنيل په مشرۍ له موسي او غاني سره ملګري کړل چې دکلا په جوړولو کې همکاري ورسره وکړي. موسي او غاني ايرياب ته ولاړ او دکلا دجوړولو کار يې پيل کړ. مولانا شرف الدين وايي چې (هره ورځ به له دوو سوونه تر درې سوو پورې مېړونه دډول او سرنې نغمونه په ډېر جديت دکلا په جوړولو لګياوو ).

تيمور د ۸۰۰ همري کال د ذي الحجې په ميات کې له کابل نه پکتيا ته ولاړ. څنګه چې ايرياب ته ورسېد خپلو لښکرو او ماهرانو ته يې هم امر وکړ چې دکلا دجوړولو په کار کې برخه واخلي او ډېر ژر يې داسې يوه کلا جوړه کړه چې يوه جامع جومات او ډېر دهستوګنې ځايونه او نور واړه جوماتونه او نور ځايونه هم بکې وو.

تیمور خپلو تواچیانو ته ویلي وو چې د موسي اوغاني دهغو اتباعو له جملې نه چې د کلا به جوړولو لګیاوو یو هم بري نږدي چې خپلو ځایونو ته ولاړ شي. دموسي اوغاني مېړونه بدې خبره شوي وو. تیمور یوه ورځ بهر وتلی ؤ او له کلا نه راګرځېده. دموسي اوغاني اوه تنه اتباع چې په کلا کې یې کار کاو. دیوې بال خانې دوره شاته ولاړ وو. کله چې تیمور ددغه وره مخې ته ورسېد ، دکلا له کړکۍ نهیو غشي بري ورګوزارشو. غشي دتیمور خوا ته ولګېد او اس یې وترېد. تیمور خپلو پوځیانو ته امروکړ چې موسي اوغاني او دهغه ټول اتباع چې دکلا په جوړولو کې یې برخه اخیستې وه. ونیسي. هغو اووتنو چې په تیمور یې دغشي ګوزار کړي و جګړه پیل کړه او څو تنه یې زخمي کړل. دتیمور مېړونه دا اوه تنه ووژل او موسي اوغاني او دهغه دوه سوه اتباع یې ونیول او ملک محمد اوغاني ته یې په لاس ورکړل، ملک محمد اوغاني ټول ووژل او له ککرونه یې منارونه جوړ کړل. بیا تیمور خپلو مېړونو ته امر وکړ چې دموسي اوغاني په خلکو یرغل وکړي. دوي دموسي اوغاني دولس ټول نارینه ووژل او ښځې ، ماشومان او مالونه او نور څه یې د ایریاب په خلکو ووېشل. تیمور ملک محمد دهغه دورور لشکر شاه اوغاني پرځاي ددغه ولایت والي وټاکه او د ارباب کلا یې هم هغه ته ور وسپارله.

تیمور له ارباب نه شلوزان (۲۵ ) ته ولاړ او هلته یې شهزاده خلیل سلطان ته امر وکړ چې له یو میر امر اوو سره بانو (۲۲ ) ته ولاړ شي او دي خپله له څلور زره سبرو سره نغر ( ۲۷ ) ته ولاړ. هلته ورته وویل شول چې دپرنیان (۲۸ ) په نامه یوې قبیلې دده له اطاعت نه سرغړولي او جنګي مېړونه یې نه دي ورکړي. تیمور ته دا هم وویل شول کوم وخت چې دشاهزاده پیر محمد لښکر له هندوستان نه له ولجو او مریانو سره کابل ته روان وو ، دپرنیان دقبیلې مېړونه پرې ورولوېدل او لښکر یې تالاکړ. تیمور چې دا خبرې واوریدې سخت په غوسه شو او په همدې ورځ ددې اوغانانو ټکولو ته ور روران شو.درې ورځې وروسته ور ورسېد او جنګي عملیات یې پیل کړل. دپنیان دقوم ډېر زیات خلک یې ووژل ماشومان یې اسیر کړل اموال او اسباب یې تالا کړل او کورونه یې وروسوځول. تیمور څه موده نور هم هلته پاتې شو او غوښتل یې چې دپرنیان دقوم جرړې له بېخه وباسي او بېخي یې تباه کړي. خو دپرنیان دقوم یو مشر چې او بل نومزده تیمور ته په ننواتې ورغي.تیمور نوره تباهي ونه کړه. اوبل یې ډېرو نازاو او خپله د ۸۰۱ هجري کال دمحرم په میاشت کې نغر ته ولاړ. خو دي لا نغر ته نه ؤ رسېدلی چې امیر سلیمانشاه دکلانیانو (۲۹ ) اوغانانو په قبیله چې دمولانا شرف الدین په قول ( یوه غښتلې ، لویه او با ابهته قبیله وه ) حمله وکړه. دسلیماشاه پوځ کلانیان سره له دې چې مولانا وایي (تنور او زړور خلک وو ) مات کړل. ډېر یې له تېغه تېر کړل نور یې ترې ونیول واړه یې ورنه اسیر او کورونه یې ور تالا کړل. تیمور له نغر نه بانو او له بانو نه هندوستان ته ولاړ.

مولانا شرف الدین لیکي چې تیمور له هندوستان نه دبېرته راتګ په وخت کې هم په بانو جې دتیمور دفرمان په اساس (داوغانانو دمفاسدو ددفع کولو دپاره په بنو کې پراته وو ) یوه ګله اسونه اوزرغوبې چې دبنو دشاخوا خلکو نه یې په زور بېولي وو ، تیور ته وروستل. تیمور اسونه خپلو سردارانو ته وروبښل، خو غوبې یې بېرته خاوندانو ته ورکړل.

مولانا وایي چې تیمور له بانو نه نغر ته ولاړ . (محمود برات خواجه او هندوشاه یې کابل ته ولېږل چې دهغه

ځاي لشکر دافغانانو دشر ددفع کولو دپاره ور ولي. ) تیمور خپله دهغې کلا دپرا خولو دپاره په نغر کې پاتې شو چې سلیمانشاه (دافغانانو دشر ددفع کولو دپاره جوړه کړې وه ) ددې کار له خلاصېدلو نه وروسته دکرمانش ددرې له لارې ، کبل نه وخوځېد . دلته مولانا دیوه ستانه پشتانه یادونه هم کوي او لیکي چې (شیخ احمد خواجه افغاني دعالم پناه [تیمور] به حضور مشرف شو. ) تیمور له کرمانش نه لوګر او له لوګر نه کابل ته ځي.

یو بل اثر چې وایي پدې سیمو کې پښتانه هستوو ،هغه تاریخ حافظ رحمت خاني دي چې اصلاً خواجو ملیزي دتاریخ افاغنه په نامه د ۱۰۳۳ هجري به حدودو کې لیکلي او بیا پیر معظم شاه په کال ۱۱۸۱ هجري کې دحافظ رحمت خان په هدایت په خپلو عباراتو لیکي او دتواریخ حافظ رحمتخاني نوم یې پرې ایښي دي. تواریخ دبابر دتره، الغ بیګ میرزا ، به وخت کې کرمه دخښکو پشتنو ټاټوبي بولي او لیکي: (فاطمه دابراهیم دګداي (زوي) الیاس زي یوسفزي وتښتوله. له کابله یې کرمې ته راوستله چې مقام دخښکو دي. ) (۳۰ ) بابر هم دپکتیا په بېلو بېلو برخو باندې دخپلو یرغلونو او لوټ او تالان دبیان په ترڅ کې دهغې سمې دپښتنو په باره کې بابر له نورو یادونو سره یو ځاي په اووم فصل کې راوړې دي.

بابر هم دپکتیا په بېلو بېلو برخو باندې دخپلو یرغلونو او لوټ او تالان دبیان په ترڅ کې دهغې سیمې دپښتنو په باره کې ښایسته زیاتې یادونې کړې دي. خو موږ هغه دپشتنو په باره کې دبابر له نورو یادونو سره یو ځاي په اووم کې راوړې دي.

پښتانه په غزني کې:-

په تحریري اسنادو کې دغزني په سیمه کې هم له ښځي پخوانه دپښتنو یادونې راغلې دي. عبدالحي بن ضحاک ګردېزي چې تاریخ ګردېزي یې د ۴۴۲ او ۴۴۳ هجري په حدود کې لیکلي دي،دغزني په غرونو کې پشتانه میشته ګڼي او یو ځاي دمسعود بن محمود دغزنوي دعصر دپېښو دبیان په ضمن کې داسې لیکي:

(او څرنګه چې امیر هپیانو (۳۱ ) ته ورسېد ، هلته دېره شو.....او امیر ایزدیار یې دغزني غروته، چې عاصیان افغانان پکې اوسېدل ، ولېږه او [ورته] ویې ویل: هغه ولایت وساته. [پامکوه] چې څه نارامي پکې پېښه نه شي. ) (۳۲ )

تواریخ حافظ رحمت خاني هم په غزني کې له پنځلسمې میلادي پېړۍ نه پخوا پشتانه میشته ګڼي او لیکي چې ( یوسفزي په ګاره په نشکي او غوریه خیل خصوصاً خلیل په ترنک ، په مقر او په قره باغ پراته وو. ) (۳۳ )

د همدې زمانې دپېښو په ارتباط بیا لیکي چې د (شیخ دادافغان خلیل متي زي نیکه...... له یو تعداد مریدانو سره چې شمېر یې تخمین درې سوو او پنځو سوو ته رسېده... له ترنک او قلات او قندهارنه دلاشوؤې سیمې ته راغلل. ) (۳۴ ) تواریخ یو بل ځاي وایي چې (پدې وخت کې دؤد زي او ځینې مومند چې له مقر او قره باغ نه راغلیوو ، لاهم دکابل په نواحي کې میشته وو او ځینې موند لاهم په مقر او قره باغ کې وو. ) (۳۵ )

حافظ رحمت خان په خلاصه الانساب کې چې په کال ۱۱۸۴ هجري کې لیکل شوي دي، لیکي چې ( افغانان په هندوستان باندې د سلطان محمود غزنوي د یرغلونو تروخته د قندهار او غزني په سیمو کې میشته وو ) ( ۳۶ )
په سیرت جلاالدین منکبرني کې چې داومې هجري پېړۍ په اوله نیمایي کې لیکل شوي دي ،
دخوارزمشاهیانو او چنګیزیانو دمقابلې او جګړو دبیان په ضمن کې په غزني کې دافغانانو یو لوي مشر د (صاحب افغانیان ) په نامه یاد شوي او داسې راغلي دي: کله چې جلال الدین دخوارزمشاه مشر زوي په کال ۶۱۸ هجري کې غزني ته ورسېد هلته )......صاحب افغانیان مظفر ملک او حسن قسراق چې د برش زره سپاره ورسره وو ، له هغه سره یو ځای شوي. ) (۳۷ )

مولانا عبدالرزاق سمرقندي په مطلع السعدین کې چې له کال ۸۷۲ نه تر کال ۸۷۲ هجري پورې لیکل شوي دي، لیکي : ( دغزني دولایت او ښار لویان...دعالم پناه درګاه ته راغلل او دبرمل دخېل خانې او خرشواني افغانان مشرف شول. ) (۳۸ )

د غزنویانو دعصر لوي مؤرخ ابوالفضل بیهقي ( ۴۷۹-۳۸۵ ) په مکرزډول په غزني کې دافغان شال په نامه یو ځای یادوي. یو ځای لیکي چې (.....له خپلوانو ، لویانو او مشرانو سره یو ځای افغان شال ته ور ننووت او دامیر عادل سبکتګین پر مزار پلي شو. ) ( ۳۹ ) بیا لیکي چې (امیربیا محمودي ماڼۍ افغان شال ته راغي. ) ( ۴۰ ) بیا لیکي چې (...دیارونه او درهمونه او هر څه یې په افغان شال کې درسوله په میدان وبازارونو کې وښندل...... )
(۴۱ ) بیا لیکي چې :(....دارالملک ته راورسید او په افغان شال کې په محمودي ماڼۍ کې دمبارکۍ دپاره پلي شو. ) (۴۲ ) یو ځل بیا هم لیکي چې (.....دافغان شال خوا ته ولاړ شي... ) (۴۳ )

دبیهقي له دې تذکراتو نه ښکاري چې دغزنویانو ددارالخلافې په زړه کې یو ځای افغانانو نه منسوب دی او د سلطان محمود پلار هم په همدې ځای کې ښخ دي.

د غزنویانو له دارالخلافې او دربار سره دپشتنو دارتباط به باره کې په ځینو نورو معتبرو آثارو کې هم یو څه مطالب راغلي دي.

مبارکشاه فخر مدبر په آداب الحرب کې چې له کال ۶۲۲ نه تر ۶۳۳ هجري پورې یې لیکلي دي ، وایي چې ادیرا نومي افغان چې د پېښور په شاوخوا کې یوې سیمې کوټوال ؤ غزني ته د سلطان محمود دربار ته ورغي. اسلام یې ومانه او ورسره ملګري شو. (۴۴ )

خواجه نعمتالله هروي د سلطان محمود او سلطان مسعود په دربارونو کې دپښتنو په باره کې یو روایت ثبت کړي چې په ډېرو نورو آثارو کې هم راغلي دي. دي لیکي:

( دافغانانو نه تنه مشران دسلطان محمود خدمت ته ورغلل. ددې نهو تنو نومونو په تاریخونو کې داسې راغلي دي: ملک خانوي او ملک عامون او ملک داؤد او ملک یحیي او ملک احمد او ملک محمود او ملک محمد او ملک عارف او ملک غازي....سلطان [دامشران] ډېر وغښتل... له ځان سره یې وخوځول

د سومنات او هندوستان غزا ته روان شو.... هر وخت به چې سلطان ته مشکل ور پېښ شو نو دا ملکان به یې دهغو له خپلو سپایانو او ډلې سره پرې وګومارل او دغه مشکل به حق تعالې حل کړ.... په لږ وخت کې [داملکان] ددونت ارکان...او د سلظنت په کارخانه کې د دخل خاوندان او داعتماد وړ شول. کله چې سلطان محمود د کال ۴۲۱ د ربیع الاول په اوم د پنجشنبې په ورځ مړ شو ، دهغه زامنو سلطان محمد او سلطان مسعود همدا سې سلوک ورسره کاوه ) (۴۵ )

نواب محبت خان په ریاض المحبت (تألیف: ۱۸۰۲ ) کې وایې چې د سلېان محمود او پښتنو تر منځ کورني روابطه هم موجود وو. دي لیکي :( کله چې دغه واکدار [سبکتګین] مړ شو ، زوي یې ، اسمعیل ، چې مور یې اصلاً مینځه وه ، د پلار ځاي ونیو. مګر محمود چې مور یې دزابل دیوه مشر لوره وه ، له دې خبرې سره مخالف ؤ چې [اسمعیل] دې د پلار ځاي ونیسي او جګړه یې ورسره پیل کړه. افغانان چې [دزابل] له دې مشر سره تړلي وو نو دهغه له لسمي یا په بل عبارت دهغه دلور له زوي یعنې محمود سره ملګري شول. محمود اسمعیل ته ماته ورکړه او په یوه کلا کې یې بندي کړ. محمود د دې مرستې په بدل کې خپله لور د افغانانو دې قبیلې مشر شاهو ته ورکړه. له دې لورنه یې دري زامن پیدا ول او هغه سالار ، مسعود او غازي و. ) (۴۶ )

لکه څنګه چې لږو وړاندې وویل شول ځینې غزنوي سلطانانو په بده ورځ کې افغانانو ته پناه ور وړې ده او لکه څنګه چې په وروسته فصلونو کې په تفصیل خبرې پرې شوي دي یو شمیر آثار دغزنوي واکدارانو به پوځ کې په زرګونو افغانانو شامل ګڼي او د سلطان محمود ځینې سترې فتحې هم دهمدوي د سربرکت ګڼي.

باید وویل شي چې په بابر نامه کې هم دغزني او شاوخوا سیمو د پښتنو په باره کې ډېر څه راغلي او موږ د پښتنو په ارتباط دبابر نامې له نورو مطالبو سره یو ځاي په اوم فصل کې راوړي دي. یو ازینی خبره چې غوا ړو دلته یو څه پرې وواېو هغه داده چې دمقر او وازې خوا په سیمو کې دبابر ډېرې خبرې دغلځو پښتنو په باره کې دي. او ځینو شرقي او غربي څېړونکو او مؤلفینو بیا همدا غلځیان له هغو ترکانو سره ګډ کړي چې په زړو متونو کې دخلج یا خلخ په نامه یاد شوي دي. راځي وګورو چې دوي دا ادعا څومره په ځاي ده ؟

خلجیان او غلځیان:-

یو شمیر مؤلفین او څېړونکي زړو اسلامي آثارو ته دا شارې پر بنا وایي چې یو وخت خلجیان چې اصلاً ترکان وو زابلستان ته ولېږدېدل. هلته میشته شول او خپله ژبه او عادات یې هېر کړل. دزابلستان دخلکو ژبه او عادات یې کسب کړل او پښتانه غلجیان یا غلځیان ترې جوړ شول.

تر کوم حده چې ماته معلومه ده ، تر ټولو نه پخواني اثر چې دزابلستان په ځایي خلکو کې دترکي خلجیانو دمنحلېدو خبره پکې یاده شوې ، هغه دمحمد بن نجیب بکران جهان نامه ده چې په کال ۶۰۵ هجري کې لیکل شوې او په کال ۱۳۷۵ کې ددوکتور امین ریاحي په همت په تهران کې هېره شوې ده.

جهان نامه وایي چې (دترکانو یو قوم خلج دخلج له شاو خوانه زابلستان ته ور واوښت او په یوه ښېدیا کې چې

دغزني خواته پرته ده میشت شو. وروسته یې دهوا دګرمۍ له امله څېره بدله او تور بخونه او ژبه یې بله شوه . ) (۴۷)

ځرنګه چې دخلجیانو دمهاجرت او دزابلستان په ځایي او سېدونکو کې دهغوي دمنحلیدو یادونه په جهان نامه کې شوې ده. او ځرنګه چې جهان نامه په ( ۷۰۵ هجري ) کې لیکل شوې ده ، نو د خلجیانو دمهاجرت او په زابلستان کې دهغوي دمنحلېدو پېښه ، طبعاً ، له ۷۵۰ هجري نه پخوا شوې ده.

دجهان نامې له متن نه داهم په صراحت ښکاري چې ددغو مهاجرو څېره او ژبه دجهان نامې دلیکنې له وخت نه پخوا بدله او تور بخونه شوې او ژبه یې هم له دې وړاندې بله شوې ده.

که څوک دجهان نامې خبره مني هه به ضرور داهم مني چې ترک خلجیان دشپږمې هجري پېړۍ له اراخرو نه دېر پخوا زابلستان ته ورلېږدېدلي دي. ځکه په هغې زمانې کې دخلجیانو په شان دیوه غښتلي قوم دومره بدلیدل او دزابلستان په یوه ځایي قوم کې یې ببخي منحلیدل باید دکلونو اولسیزونه ، بلکه دپېړیو کار وي او پدې حساب سړي په پوره اطمینان ویلي شي چې ترک خلجیان به لږ تر لږه په دوهمه یا درېیمه هجري پېړۍ کې زابلستان ته لېږدېدلي او بیا دهغې سیمې په ځایي خلکو کې منحل شوي وي.

کوم څېړونکي او مؤلفین چې وایي ترکي خلجیان دزابلستان په ځایي خلکو کې منحل شوي او په نهایت کې په پښتنو غلځیانو بدل شوي دي.هغوي په حقیقت کې دا خبره تصدیقیقوي چې لږ تر لږه ددوهمې او درېیمې هجري پېړۍ په حدود کې دزابلستان ځایي اوسېدونکي پښتانه وو. ځکه جهان نامه وایي چې ترکو خلجیانو خپله طبه بایلوده او دزابلستان دځایي اوسېدونکو طبه یې زده کړه. که ترکو خلجیانو دزابلستان دځایي خلکو ژبه زده کړې وي، که دغلځیانو ژبه تر اوسه پښتو وي او غلځیان او خلجیان هم سره یو شي وي، نو دخلجیانو دمهاجرت په وخت کې به دزابلستان دځایي اوسېدونکو ژبه هرو مرو پښتو وه. که نه وي نو نه باید خلجیانو پښتو زده کړې وي او نه باید دغلځیانو ژبه پښتو وي.

خو ځیني کسان بیا له یوې خوا وایي چې ترک خلجیان زابلستان ته لېږدېدلي او دهغې سیمې دځایي خلکو ژبه او عادات یې کسب کړي او پښتانه غلځیان ترې جوړ شوي دي، او له بلې خوا بیا وایي چې (پښتنو په څورلسمه او پنځلسمه (میلادي) پېړۍ کې دغزني سطح مرتفع اشغال کړه. ) ( ۴۸ ) او دا دوه خبرې ارخ نه سره لګوي. ځکه که خبله پښتانه غزني او زابلستان ته په اتمه او نهمه هجري پېړۍ کې ور لېږدېدلي وي، نو ترک خلجیان بیا څنګه ، په همدې ځای کې ، له دې نه دېر پخوا یهنې د درېیمې او څلورمې هجري پېړۍ په حدودو کې پکې منحل شوي دي؟ او که ترک خلجیان دزابلستان په ځایي خلکو کې د درېیمې او څلورمې هجري پېړۍ په حدودو کې منحل شوي او پښتانه غلځیان ترې جوړ شوي دي، نو بیا دا خبره څنګه کېدي شي چې پښتانه له دې نه دېر وروسته یعنې داتمې او نهمې هجري پېړۍ په حدودو کې غزني او زابلستان ته ورلېدلي دي؟

له دې دوو خبرو نه یوه هرو مرو غلطه ده. خو دا چې کومه یې غلطه ده؟ ددې سپینول هغه چاته ور په غاړه دي

چې وايي ترک خلجيان د زابلستان په ځايي خلکو کې منحل شوي او پښتانه غلځيان ترې جوړ شوي دي.

پښتانه د کابل په سيمو کې:

پخوانو آثارو په کابل هم د پښتنو يادونې کړي. د ابن بطوطه سفرنامه تر ټولو نه پخواني معلوم اثر دي چې وايي په کابل کې افغانان اوسېږي. کله چې ابن بطوطه په ۱۳۳۳ ميلادي سنه کې له کابل نه تېرېږي وايي چې د دغه ځاي او سېدونکي افغانان دي. دي ليکې چې (کابل پخوا يو لوي ښارؤ [خو اوس] يو کلي ترې پاتې دي. او د عجميانو يوه طايفه چې افغانان نومېږي پکې اوسېږي. افغانان په غرونو کې ډېرې لکلې مېنې لري او ډېر غښتلي خلک دي. ) (۴۹ ) ابن بطوطه خبرې ته دوام ورکوي او ليکي چې (هلته د سليمان د غره په نامه يو ستر غر دي. د افغانانو پاچا هم هلته اوسيږي. ) (۵۰ )

ابن بطوطه په خپله سفرنامه کې په کابل ديوه وتلي ستانه افغان نوم هم اخلي او وايي چې (په کابل کې د شيخ امعيل افغاني په نامه يوه خانقا هم شته (او يخ اسمعيل افغاني ) د شيخ عباس نومي سترولي شاگرد ؤ . (۵۱ )

اما کوم اثر چې د کابل په ښار او شاوخوا سيمو کې په پنځلسمه ميلادي پېړۍ کې ، د پښتنو د حالاتو په باره کې ښايسته مفصل بحث لري هغه تواريخ حافظ رحمت خاني دي. په تواريخ کې د هغه مهاجرت په ترڅ کې چې وايي يوسفزو د پښتنو د پنځلسمې ميلادي پېړۍ په حدودو کې وکندهار له سيمو کې د ډېر حشمت او شوکت خاوندان شول او د کابل ټول حدود او مضافات يې تر خپل تصرف لاندې راوستل. ) (۵۲ )

بيا ليکي چې د کابل پاچا الغ بيگ ميرزا و. خو اصلي قدرت او واک اختيار ديوسفزو د مشر ملک سليمانشاه په لاس کې و. (۵۳ )

بيا ليکي چې په کابل کې (يوسفزي هر گوره غالب وو. د ميرزا الغ بيگ پروايې نه لرله. د خپل اختيار څښتن وو هر چې ملک سليمانشاه او يوسفزو کول هغه به کېدل......اسمعيل د مزکت زوي هسې يو بد مست او ظالم شرابي و چې اصيل خلق به يې په زور ظلم نرخ نرم کړ او ځيزونه به يې اخيسبل او نياو يې چانه شه کاو ) (۵۴ )

تواريخ د اسې ښيي چې د پنځلسمې پېړۍ په دوهمه نيمايي کې پښتانه په کابل او د کابل په شاوخوا سيمو کې ميشته او مسلط خلک دي. ده چې پدې سيمو کې به څومره پښتانه اوسېدل ، پدې باره کې سړي په يقيني ډول څه نه شي ويلي ، خو تواريخ د اخبره په صراحت کوي چې د کابل د هغه رخت واکدار ، الغ بيگ ، يوازې ديوسفزو د قوم اوه سوه مشران په يوه ورځ ووژل. ) (۵۵ )

په کابل او شاوخوا سيمو کې د پښتنو د هستو گنې او حالاتو په باره کې په بابرنامه کې هم ډېر څه راغلي او مورږ وروسته په اووم فصل کې راوړي دي.

پښتانه د ننگرهار او پېښور په سيمو کې:

په پخوانو تحريري آثارو کې دهغو سيمو دپښتنو په باره کې هم ډيرې يادونې شوې چې له ننګرهار نه دابادسيند تر غاړو پورې امتداد لري. حدود العالم من المشرق الي المغرب بيا هم د اسلامي دورې لومړني اثر دي چې ان په څلورمه هجري پيړۍ کې د ننګرهار په سيمه کې د پښتنو يادونه کوي. کله چې د دې اثر مؤلف د ننګرهار او لغمان په سيمو غږيږي، ليکي چې (بنيهار يو ځاي دي چې پاچا مسلماني کوي او له دېر شو نه زياتې مسلماني، افغاني او هندوې ښځې لري. نور خلک يې بت پرست دي او درې ستر بتان لري. ) (۵۲ )

د اسې ښکاري چې د حدود العالم د پيدا شوې نسخې ناسخ د پورته عبارت د اولې کلمې ټکي ، سهواً ښځايه ايښي او ننهار يې بنيهار کړي دي. دليل دا چې يو خو د حدود العالم د متن له قرينې نه داسې ښکاري چې مؤلف يې د ننګرهار د سيمې په باره کې غږيږي او بل دا چې خپله د حدود العالم درودونو په بحث کې هم دا کلمه واضحاً ننهار ليکل شوې ده.

(او بل هغه رود دي چې د لغمان او ددنبور په حدودو کې له غره نه راوزي او د ننهار له حد نه تېريږي. ) ( ۵۷ ) د حدود العالم محشي، مينورسکي هم دا کلمه ننهار يا ننني ننګرهار بولي او وايي چې معنا يې نهه نهرونه ده. (۵۸ )

عبدالجبار عتبي د هغو جګړو د بيان په ضمن کې چې سبکتګئين د کابل له شرقي حدودو نه د پېښور تر شاوخوا سيمو پورې د هندوشاهانو له مشر سره کړي دي، پدې سيمو کې د پښتنو يادونه کوي. دي ليکي چې د سبکتګين جګړنو د هندوانو په لښکر (يو په يو حمله وکړه. ډېر زيات يې ورنه تباه کړل او پاتې يې ورنه وتښتيدل. وروسته تر دې نه هندوانو لکۍ په سر واړولې او له دغو ولاياتو نه يې طمع وشکوله.........د افغانانو او خلجيانو ولس چې ددغو سيمو کوچيان وو ، د ناصرالدين په مېړونو کې شامل شول ) (۵۹ )

ابن اثير هم په کامل کې د کال ۳۷۶ هجري د پېښو د بيان په لړ کې ليکي چې د سبکتګين پوځ هندوان مات کړل. وروسته له دې پېښې نه (هندوان خوار شول. زياتې يې بيرغ نه لاره او دايې ومنله چې د هيواد داسې سيمو ته ولاړ شي چې څوک نه يې ور رسېدلي. څرنګه چې وروسته له دې پېښې نه سبکتګين د قوت او شوکت خاوند شو افغانيانو او خلج يې اطاعت ومانه. ) (۶۰ )

وروسته رشيدالدين فصل الله په جامع التواريخ کې (تأليف: ۷۰۴ هجري ) دا مطلب تقريباً د العتبي په عباراتو ثبت کړي دي. دي ليکي چې امير ناصرالدين (يو په يو حمله وکړه.......هغه سيمې په اسلامي ملکونو ور زياتې شوې........د افغانانو او خلجيانو ډلې دهغه ځاي کوچيان وو......دهغه په مېړونو کې داخلې شوې. ) (۶۱ )

محمد قاسم هم دا پېښه په تاريخ فرشته کې ثبت کړې او ليکي چې ( وروسته له دې فتحې نه.........سبکتګين د خپلو اميرانو يو تن په پېښور کې پرېښود او د افغان او خلج قومونه يې چې ددغو سيمو کوچيان وو په خپلو مېړونو کې داخل کړل او غزني ته ولاړ. ) (۶۲ )

میر خواند هم دا مطلب هم دا مطلب په روضةالصفا کې ثبت کړي دي. ( ۲۳ ) ابوریحان بېروني (وفات ۴۴۰ هجري ) هم د هند په تاریخ کې وايي چې پدې سیمو کې افغانان میشته دي. دي لیکي:

( په هغو غرونو کې چې د غرب په لور د هند سرحد جوړوي د هندوانو او یا هغو خلکو قبایل هست دي چې له هغوي [هندوانو] سره نژدې خپلوي لري. دا سرکش او زېږه قومونه دهندوانو د طایفو تر ټولو نه لرې سرحداتو پورې پراته دي. ) (۲۴)

بېروني لږ وروسته په همدې اثر کې په صراحت وايي چې دا زېږه خلک افغانان دي. دي لیکي چې د هند د غربي سرحد په غرونو کې د افغانانو متعدد قبایل میشته او د سند هدوادي تر ګاونډه پورې خپاره دي. ) (۲۵)

بېروني په خپلو نورو آثارو کې هم دا غرونه د افغانانو د غرونو په نامه یادوي.

په صیدنه کې لیکني چې (داسطو خوزس......دا ډول د هند د ځمکې د ، پرشاور [ پېښور] او د افغانانو د غرونو تر منځ دد هک (۲۶) خواته شین کیږي. (< ۲۷ )

په همدې اثر کې بیا لیکي چې: په جبال الافغانیه ( ۲۸ ) کې یو ډول وحشي زیتون پیدا کیږي چې وړې دانې لري ) (۲۹)

بېروني په یوه بل اثر ،اجواهر ، کې لیکي چې سره زر د افغانانو دتغر په سیمه کې پیدا کیږي. (۷۰)

شیخ ربوه (وفات ۷۲۷ هجري ) هم دافغانانو د غرونو یادونه کوي او داسي ښکاري چې مطلب یې همدا غرونه دي. دي لیکي چې (درې یم اقلیم.....له ګجرات.....او دافغانانو له غرونو (۷۱) او ملتان نه تر سنده پورې امتداد لري. ) (۷۲)

ابوالفرج روني د غزنوي سلطان علاءالدوله مسعود بن ابو المظفر ابراهیم د عصر شاعر دي. دغه سلطان چې له کال۴۹۲ نه تر کال ۵۰۸ هجري پورې یې سلطنت کړي دي، په هند کې یې ډېر فتوحات کړي دي. ( ۷۳ ) روني دغه فتوحات ستایلي دي او دیوې قصیدې له یوه بیت نه یې داسې ښکاري چې د غزنویانو په عصر کې د اباسیند د غاړې د لرغوني ښار ، موهند یاویهند ، اوسېدونکي هم پښتانه دي. روني وايي:

لشکر منصور او هنوز به موهند

برتن افغان تنیده است فغان را (۷۴)

لرغوني معتبر آثار موهن یاویهند یابیهند داباسیند په غاړه کې یو ښار او د ګندهار راپایتخت ګڼي. بېروني چې د پخواني هند د ځایونو او حالاتو د ښودلو او بیان په برخه کې ډېر وچ صلاحیت خاوند دي، ویهند د ګندهارا ي،ه قصبه او پایتخت بولي. دي په صفت المعموره کې لیکي چې ( ویهند د سند په وادي کې د

القندهار (ګندهارا ) یوه قصبه ده. ) (**۷۵**)

همدي ؟؟؟؟بيا کله چې د هند په تاريخ کې ، د سيندونو او لويو لارو او بېلو بېلو سيمو په باره کې غږيږي ، و ايي سړي چې (شمال غرب په لور ور وخوځيږي ، وروسته له اته فرسخه د بياته د سيند غرت ته د جيلم سيند ته ، وروسته له شل فرسخه د سند د سيند غرب ته د قندهار پايتخت ويهند ته او (بيا ) پرشاور (پيښور ) ته رسيږي. ) (**۷۶**)

په همدې اثر کې بيا ليکي چې (غوروند....يو لوي سيند دي او دا قندهار له پايتخت يعنې ويهند نه کوز دبتور قصر ته نږدې د سند په سيند کې توييږي. ) (**۷۷**)

يو بل ځاي په همدې اثر کې دويهند موقعيت په درجو او دقيقو ښيي اوليکي چې (پرشاور په څلور د ېرش درجو او څلور څلويښت دقيقو ، ويهند په څلور دېرش درجو او ل دقيقو عرض البلد کې ) واقع دي. (**۷۸**)

د مهاج السراج جوزجاني په طبقات کې هم دويهند کلمه بيا بيا راغلې. اودوهند ، ويهند بهند ، ومهند او ويهند په بڼه ليکل شوې ده. ي، ځاي په طبقات کې راغلي چې (په کومه شپه چې محمود (غزنوي) وزېږيد دوهند يابيهند......بتخانه چې دبرشابور (پېښور ) په حدودو کې د سند د سيند په غاړه واقع وه ړنګه شوه. ) .(**۷۹**)

د البېروني او جوزجاني بيانات پدې کې هيڅ شک نه پريږدي چې ويهند يا موهند د اباسيند په غاړه کې يو ښار او دګندهارا پايتخت دي او روني وايي د غزنويانو لښکر په موهند کې په افغانانو ناتار جوړ کړ. ددې خبرې معنا داده چې داباسيند دغاړي پدې مهم ښار کې هم پښتانه اوسيدل. داځاي اوس دهنډ په نامه ياديږي.

فرشته هم وايي سلطان محمود د کال **۳۹۱** او **۳۹۲** هجري تر منځ په ويهند حمله وکړه او دهغه ځاي پښتانه يې وځپل. دي ليکي چې (سلطان محمود په کال **۳۹۱** کې بيا.......دبيهنده کلا ته ولاړ او هغه يې ونيوله.....جيپال او نور اسيران يې.....آزاد کړل. [خو] دافغانانو مشران يې ووژل او ځينې يې له ځان سره دنوکرانو په حيث بوتلل. ) (**۸۰**)

کوم مطلب چې مبارکشاه فخر مدبر په آداب الحرب کې(تأليف: **۶۲۲ ۶۳۳** هجري) داديرا نومی پښتانه په باره کې ليکلی دی، له هغه نه داسې ښکاري چې پښتانه د غزنويانو په عصر کې په پېښوراو شاوخوا سيمو کی هم ميشته او د هندوانو له دربار سره محور دي. مبارکشاه ليکی:

( مؤلف ديوه کار دپاره له پرشور (پېښور ) نه بتهی ګرام او شاپور ته روان ؤ. دپېښور يو پوه سپين ږيری ورسره ملګری شو....[سپين ږيری ورته وويل] دسلطان يمينالدوله محود [غزنوی]....په وخت کې اديرا نومی افغان دنر درې شحنه او کوتوال ؤ. اديراله جيپال پاچا نه له دې امله ووېريده چې يوه ورځ له جيپال سره ناست ؤ، [پاچا] مخ ور واړاو [او ورته] ويې ويل چې اديرا تاسو دغويی غوښه خورئ؟ اديرا ځواب ورکړ چې زه يې نه

خورم خو..... ) (۸۱ )

فرشته هم دابو الحسن علی بن مسعود بن محمود دجلوس د کال دپېښو دبیان په ترخ کې پښتانه له پېښور نه تر ملتان او سنده پورې خپاره ښیي او لیکي (علی بن ربیع دمیرک وکیل په ملګرتیا....له یو شمیر مریانو او امیرانو سره پېښور ته وتښتید او هغه سیمه یې تر ملتان او سنده پورې ترلاسه کړه او افغانان یې چې خرابی او ورانی یې کاوه، په توره ایل کړل ) (۸۲ )

تواریخ حافظ رحمت خانی هم د پنځلسمې میلادی پېړۍ په وروستیو وختو کې له کابل نه داباسیند تر شرقی غاړه پورې پښتانه خپاره او هست ګڼي. ځینې له هغو یادونو نه چې تواریخ د کابل د پښتنو په باره کې کړې دي، موږ په همدې بحث کې پخوا را واخیستی، خو د پېښور په ارتباط لیکي چې (هغه وخت کې په پېښاور ، دو آبه، باجوړ، ننګرهار، کاله پانی تر هزارې تر سینده پورې دا واړه ملکونه ددلزاکو وو، هر چېرې دوی پرې ساکن وو ) (۸۳ )

بیا لیکي چې (ملک هیبو بن جته دلزاک عمر خیل......زرو کورو کم وبیش عمر خېلو سره په باجوړ کې په جندول کې اوسیده ) (۸۴ )

بیا لیکي چې (دلزاک ډېر لوی تومن دی پدې ملکونه هر چیرته دوی پراته دی. چنانچه په پېښاور ، په ننګرهار په تیراه په کال پانی ترپیښوره چې په کناره داباسین او په چچ هزاره او په کرلغ هزاره چې له اباسیند نه پورې غاړه پراته دی، اوسېږی. ) (۸۵ )

تواریخ بدې او نورو سیمو کې ددلزاکو دسکونت نورې یادونې هم کړې دي.

په بابرنامه کې هم په هغو سیمو کې چې له ننګرهار او شاوخوا سیمو نه داباسیند تر غاړه پورې امتداد لري د پښتنو او دهغو دژوندانه دحالاتو په باره کې ډېر څه ویل شوي دي او لوستونکي یې ددې لیکنی په اووم فصل کې لوستلی شی.

پښتانه په پخوانی <<افغانستان>> کې:

په ځینو پخوانو آثارو کې په هغې لویه سیمه کې هم په همدې وخت کې د پښتنو د سکونت او حالاتو یادونې وې چې هم سیفی هروي په تاریخنامه کې (تألیف ۷۲۱-۷۱۸ هجري ) او هم ځینې نورو پخوانیو مؤلفینو د (افغانستان ) په نامه یاده کړې ده او موږ ددې لیکنې په اتم فصل کې پرې غږېدلی یو.

لومړنی معلوم تحریری سند چې ددې پراخې سیمې په ځینو برخو کې، د پښتنو د سکونت یادونی پکې شوي هغه د فردوسی د شهنامې ملحقات دي چې د لیکلو وخت یې د شپږمې هجري پېړۍ په حدودو کې ټاکل شوی او د ناظم نوم یې نه دی معلوم. ناظم د افغانانو او د هغو د مشر ، کک کهزاد ، په باره کې په ښایسته تفصیل

غرېدلی دی خو دلته یې یو ازې یو څو د مطلب ټکی را اخلو .

ناظم وایی چې ده ته یو بزګر د پخوانو خلکو له خولي داسې کیسه وکړه چې له غزني نه د دریو ورځو په فاصله یو لوړ غر و. په غره کې یوه ستره کلا وه چې دی وایی نوم یې مرباد و. وایی چې پدې کلا کې یو ډېر غښتلی توریالی او جنګیالی سپین ږیری افغان اوسېده چې نوم یې کک کهزاد او دزرګونو سپرو او پیاده جنګی میړونو مشرو. د زابل او سیستان له سیمو نه به یې مال او باج ټولاو . د رستم پلار او نیکه ته یې چې د سیستان مشران او پهلوانان وو ، څو څو واره ور ښودلی او باج او خراج یې پرې منلی ړ. زال به کک ته هر کال د غوایی په پوټکی ، لس مشکه زر ورکول. خو په پای کې د زال زوی ، رستم له کک سره ډغر کې ووهلې او مات یې کړ پدې وخت کې زال هم له سیستان نه ور ورسید او لښکر یې له نورو پښتنو سره وجنګید ډېر زیات افغانان ووژل شول او ناظم داهم وایی چې د کک د شاهنشاهی مانۍ ته ورننووت او تالا یې کړه. ناظم داهم وایی چې د کک د شاهنشاهي مانۍ په هر ګوټ کې یوه خزانه پرته وه او زال ته ډېرې زیاتې په درو ښکلل شوې خولۍ ، په یاقوتو ښکلل شوې قباوې ، په لالونو ښکلل شوي تاجونه ، په ګوهرو ښکلل شوي ملاوستني ، سپوږمۍ غوندې ځلانده مینځې ، چینی غلامان او بېخی زیات دینارونه او خز او سمور په ګوتو ور غلل پدې پسې زال د مرباد کلا ورانه کړه.کک او دهغه وراره بهزاد دواړه یې ووژل. (۸۲)

خپله دشهنامې د ملحقاتو ددې کیسې د سریو څوبیتونه دادي:

چنین ګفت دهقان دانش پژوه

مراین داستان را زپیشین ګره

که نزدیک زابل به سه روزه زاه

یکی کوه بد سر کشیده به ماه

یکی قلعه بالای آن کوه بود

که آن حصن ازمردم انبوه بود

به دژ دریکی بد کنش جای داشت

که در رزم با اژدها پای داشت

نژادش زافغان سپاهش هزار

همه ناوک اندازو ژوبین ګذار (۸۷)

اما کوم مؤرخ چې پدې سیمو کې دافغانانو یادونې هغه سیفي هروی دی. سیفي په خپل معتبر اثر ، دهرات تاریخنامه کې چې له کال ۷۱۸ نه تر ۷۲۱ هجري پورې یې د سلطان غیاثالدین کرت په هدایت او مشوره لیکلې ده ، دافغانانو او هغې سیمې په باره کې چې په تاریخنامه او ځینې نورو پخوانو آثارو کې ، لکه تاریخ فیروز شاهی( ۱۳۵۷م) ، روضات الجنات( ۸۹۹-۸۹۷ هجري) او مطلع السعدین ( ۸۷۵-۸۲۷هجري) د (افغانستان) په نامه یاده شوې ده ، یولړ دپوره اعتنا و مطالب راوړي دي.

سیفي دا مطالب اکثره دهغو یرغلونو دبیان په ضمن کې یاد کړي چې دهرات دکرت د کورنۍ مؤسس ، مشر ملک شمسالدین ، د (افغانستان) په بېلو بېلو برخو کې کړی دي. سیفي د تاریخنامې دیارلس فصله ، غونډ ، د (افغانستان) پېښو ته وقف کړي دي او ددې تر څنګه یې د افغانانو په باره کې ځینې نورې متفرقې یادونې هم کړې دي.

څرنګه چې د سیفي تاریخنامه لومړنی معلوم اثر دی چې د (افغانستان) نوم پکې یاد شوی او د (افغانانو ) د سیاسی ، نو له دې امله موږ ددغه درانده اثر دا دیارلس فصلونه ، ټول په مرتب مګر مختصر ډول را اخیستی او پداضمن کې مو یو نیم بل اثر مثلاً دزمچي اسفزاری روضاؤةالجنات ته هم کله ناکله اشاره کړې ده.

سیفي وایي چې چنګېز خان په افغانستان او سیمه باندې د خپلو یرغلونو او فتوحاتو په وخت کې ملک رکن الدین د غور او دغور دمضافاتو دملک په حیث ومانه. وروسته به چې ملک رکن الدین په غزنی کې د چنګیزی حاکمانو لیدنې کتنې ته ورته نو ملک شمس الدین کرت به یې هم له ځان سره بېوه . په همدې جریان کې ملک شمس الدین کرت چنګېزي مشرانو ته ښه ور وړاندې شو او د ملک رکن الدین له مرګ نه وروسته یې په کال (۶۴۳) هجري کې دغور د ملک په حیث ومانه او دملکی پګړی هم خپله جنګېزی مشر ، طاهر بهادر ، وروتړله کله چې ملک شمس الدین کرت په کال (۶۴۵) کې د غور د ملک بهادر ، ورو تړله ، کله چې ملک مسالدین کرت په کال ۶۴۵ کې د چنګیزیانو د لوی مشر ، منکو خان، دربار ته ورغی هغه د هرات توابع او ځینې نورې سیمې چې د سیفي دوخت افغانستان هم پکې شمل و ، ورته په نامه کړې. ملک شمس الدین د چنګېزی منکو خان له یوه نژدې مشاور ، جاهو ، سدهرات ته ولاړ او دکرت د کورنۍ دواکداری سلسله یې پیل کړه ، څو کاله وروسته یط د (افغانستان) د نیولو بندوبست وکړ. په کال ۶۵۰ هجري کې یې یو هیئت چې په سر کې یې جاهو واقع ولېږه او وظیفه یې دواه چې د چنګیزي مشرانو او ملک شمس الدین فرمانونه د (افغانستان) واکدار ملک شاهنشاه ته ور ورسوي. هیست فرمانونه ملک شاهنشاه ته واورول. شاهنشاه د هیست مشر ته وویل چې (ملک شمس الحق والدین د کفارو په حکم دې ملک ه راغلی دی او موږ تر اوسه پورې چنګېز خانیانو ته مالیه نه ده ورکړی. ) خو ملک شمس الدین ته به چې یو مسلمان ملک دی ، یو څه مالیه ومنو . له دې ځواب نه وروسته یې د بر تنه غلامان جاهو ته ورویښل او ملک شمس الدین ته یې هم ګران سوغاتونه ورولیږل.

هیئت بېر ته ملک شمس الدین ته ته ورغی. ملک شمس الدین چې دا مهال په تکناباد کې و دملک شاهنشاه ددځواب له اوربدلو نه وروسته د خپلو ډېرو زیاتو لښکرو سره په شاهنشاه دباندې د حملې په اراده ،

مستونګ ته روان شو. شاهنشاه چې خبر شو له پنځه زره جنګې مېړونو سره د خاسک چونۍ ته چې له مستونګ نه بهر پرته وه ، ولاړ.

ملک شمس الدین د **۷۵۲** هجري کال د محرم د میاشتې په اوایلو کې د متونګ ښار کلابند کړ. خو څنګه چې پوه شو چې شاهنشاه د خاسک کلا ته تللی دی ، نو هلته پسې ورغی او کلایې محاصره کړه. کلا درې میاشتې محاصره وه او د ملک شمس الدین او شاهنشاه قواوو اوه ځله جګړه سره وکړه. خو شمس الدین کلا ونه شوه نیولی. په پای کې د ملک شمس الدین قواوو د خاسک په کلا له هرې خوا حمله وکړه. د کلاور یې وسوځاو ، کلاته ور ننوتل او د ملک شاهنشاه ډېر زیات جنګې مېړونه یې ووژل. ملک شاهنشاه او د هغه زوی برامشاه یې هم له نوي تنه خپلوانو او نوابانو سره ګرفتار او مړه کړل. سرونه یې ترې پرې کړل او شاو خوا سیمو ته یې د نورو د عبرت دپاره واستول.

ملک شمس الدین د **۷۵۳** هجري کال د هور په میاشت کې له مستونګ نه د (افغانستان) د یوې بلې کلا ، تېري، دنیولو په نیت روان شو. دتېري د کلا کوټوال یو ډېر لوی د نامه او قدرت خاوند ، المار افغان و.ده هغو فرمانونو ته چې جاهو (افغانستان) ته ورېږوو ، ډېر کلک ځواب ورکړی و او ویلی یې وو چې (که زما ټول خپلوان او عزیزان د ملک شمس الدین خدمت او مالیه ومنی زه المار به یې تر مرګه ونه منم. نه دهېڅ سلطان په وخت کې زما پلرونو او نیکونو د مغولو خدمت منلی او نه یې د کفارو مالیې ته تن ورکړی دی. څو واره طاهر بهادر او سالی نو ین زاغلل خو سره له خپلو سترو لښکرو پېمانه او مړه مړه څټونه ېېرته ولاړل. موږ دامنو چې شب تنه غلامان ملک شمس الدین ته ورولېږو خو که تر دی زیات څه غواړي نو بیا به په توره او ډال فیصله کېږي. ) (۸۸)

کله چې د ملک شمس الدین لښکر د تېري کلا ته ور ورسېد ، له هرې خوا یې حمله پیل کړه. جګړه شپېته ورځې روانه وه. په پای کې ملک شمس الدین کلا ونیوله. المار ګرفتار او په ملا کې یې دوه ټوټې کړ. دالمار د پنځو سو تنو صاحب منصبانو سترګې یې په سره سیخ ورنه وایستې. له پنځو سو تنو نه یې پښې او لاسونه پرې کړل. د پنځو سو تنو یې غوږونه او پوزې ور پرې کړې او پدې ډول یې د (افغانستان) دیوه بل لوی مشر ، المار مېنه بېخې سپېره کړه.

شعیب افغان ، د (افغانستان) یو بل لوی مشر و چې ملک شمس الدین غوښتل ویې ځپي ، سیفي وایي چې شعیب یو نومیالی او زړور افغان او د سرنا (۸۹) د قوم و. یو زرو پنځه سوه جنګې مېړونه ورته ولاړوو. کله چې ملک شمس الدین په کال **۷۵۱** هجري کې د (افغانستان) په یرغل ور ووت، شعیب کشمیر ته واوښت. خو کله چې خبر شو چې ملک مس الدین د خاسک او تېرې کلاوې ونیوې نو بېرته (افغاستان) ته ولاړ.

د ملک شمس الدین یوه لوی مامور ، محمد نهی ، چې پنځه سوه مېړونه ور سره وو په ګرمسیر کې مالیه ټولوله. شعیب خان ګرمسیر ته ورساو او د محمد نهی په مېړونو نیمه شپه ورولوېده. ډېر یې ورنه ووژل او یو شمېر اسونه یې ورنه بوتلل.

کله چې ملک شمس الدین کرت پدې پېښه خبر شو نو د شعیب د ټکولو د پاره (افغاسنتان) ته رون شو ، شعیب سمد ستی د کهیرا کلاته پناه یووړه ، سیفی وایې دا کلا دومره پخه او له دومره شتونه ډکه وه چې (نه په ثلور کونجه دنیا کې بله داسی کلا موجوده وه اونه یې پرته د قارون ملعون له ګنج نه بل چېرته د خزانو او ذخیرو ساری و.) (۹۰)

تاج الدین د کال **۶۵۴** هجري دربیع لاول به میاشت کې ځان له دوو زرو سپرو او سالارانو سره د دوکی کلا ته ورو ساوه. د جنګ نغاره یې وغږوله او خپلې لښکرې یې له کلانه را تاو کړې. سندان هم له اوه سوه مېړونو سره ورووت او جګړه پیل شوه. جګړه او خونریزي اتلس ورځې روانه وه. په نولسمه ورځ ملک شمس الدین خپله هم له خپل عظیم لښکر سره ور ورسېد. د شمس الدین دلښکر او د سندان د مېړونو تر منځ پنځه ورځې د کلا دوره کی کلا وروسوځاوه او د کلا یو برج یې ونیو. سندان خپله هم له دوو سوو مېړونو سره له کلا نه ورووت او جګړه یې پیل کړه. د شمس الدین یو شمېر عسکري مشران او لویان یې ووژل. هو په پای کی خپله هم له خپلو مېړونو سره ووژل شو او ددوکی کلا هم ملک شمس الدین ونیوله.

سیفي لیکي چې ددوکی د سیمې یو میر مالداران او غټان ملک شمس الدین ته ورغلل او ورته وېې ویل چې ددوکی له کلانه او یا فرسخه جنوب ته دافغانی غلو یوه ډله ده اودا تخمین دېرش کاله کیږی چې لارې وهی. دوی له ملک شمس الدین نه خواست وکړ چې دغه افغانان چې د کنکان او نهران په نامه یاد ېږی ، وځپی. ملک شمس الدین دوه زره سپاره د ځینو وتلو سالارانو په مشری د کنکان او نهران ټکولو ته ور ولیږل.

وروسته له ورځو ورځو جګړو نه له دواړو خواوو پنځه سوه تنه ووژل شول. په پای کې د ملک شمس الدین د سالارانو ټول پوځ یو وار په کنکان او نهران ورغی. سل تنه یې په جګړه کې ورنه ووژل او نور ټول یې له ټول مال او آل سره ملک شمس الدین ته ورو ستل. شمس الدین داویاتنو نه لاسونه وایستل او نور یې د (افغانستان) یوه مر ، ملک جاول ، ته چې له شمس الدین سره یو ځای شوی و ، وروښل.

د کنکان او نهران له ځپل کېدلو نه وروسته ،د (افغانستان) دوو لویو مشرانو ، ملک تاج الدین او ملک جاول په ګډه ملک شمس الدین ، د (افغانستان) دیوې بلې کلا ورانولو ته ور وباله. دا کلا د ساجی په نامه یادېده او سیفی وېې چې پدې کلا کې (زروتنو داسې توریالو او زړورو افغانی مېړونو ژوند کاو چې دیزدګرد له وخت نه بیا تر اوسه پورې یې هیڅ پاچا ، ملک او حاکم ته داطاعت سرنه و ټیټ کړی او بې پروایی ، توره ، او زړورتیا یې له تصور او عقل نه وتلی وو ) .(۹۱)

ملک شمس الدین دا ومنله چې د ساجی په کلا یرغل وکړی .خو ده ددې مهم د ترسره کولو د پاره یې له چنګیزي سالار قنقور دای نوین نه هم دوه زره جنګی مېړونه وغوښتل. څنګه چې دا مېړونه ور ورسېدل د ساجی په کلا ورغی. جګړه یې پیل کړه. او ورځې ډېر کلک جنګ روان و او له دواړو خواوو نه دومره خلک ووژل ول چې سیفی وایی وینو سیلاوونه روان شول. په پای کې ملک شمس الدین ځان د کلا وره ته ور ورساوه خو څنګه چې ورله او سپنې نه جوړو نو ژر یې مات نه شو کړی. دوه ورځې هلته پراته وو او په جګړه

کې زر تنه نور هم له دواړو خواوو ن ووژل شول. په درې يمه ورځ د کلا خلک دوه ګونده شول او له يو بل سره يې جګړه پيل کړه. غالب ګوند د کلا ور د دښمن د قواوو پرمخ پرانيست. ملک شمس الدين د کلا خلک ځوک ووژل او ځوک يې اسير کړل. کلا يې ورانه کړه او ډېر زيات غنايم يې ورسره يوووړل.

په کال ۷۵۷ هجري کې ملک شمس الدين بيا مخ په (افغانستان) وخوځېد او داځل يې هدف د (افغانستان) ديوې بلې ډېرې سرې او پخې کلا ، بکر ، نيول و . شمس الدين په ډېره بيړه ځان د کلا سيمې ته ور وساوه او له کلانه اته فرسخه لرې له خپل پوځ سره دېره شو . له هغه ځای نه يې خپل پنځه تنه سالاران او وتلی کسان کلاته ور ولېږل او د کلا له مشرانو نه يې وغوښتل چې په خپله خوښ د ملک مخې ته ور ووزي. خود کلا والی د ملک شمس الدين استازو ته ډېر سخت ځواب ورکړ او ورته ويې ويل چې که شمس الدين له ځان سره ښه کوي نو بايد چې دده کلا ته چپ ونه ګوري.

کله چې شمس الدين ته دبکر د والی ځواب ور ورسېد ، سمدستی يې خپلې لکرې وخوځولې او دبکر د کلا شاوخوا ته يې واچولې. جګړه پيل شوه اوله دواړو خواوو نه ډېر زيات مېړونه ووژل ول چې په هغوی کې د شمس الدين ځو تنه لوی پوځی منصبداران هم شامل وو. جګړه دولس ورځې روانه وه. په دياړلسمه ورځ د کلا يو شمېر مخور شمس الدين ته ورغلل او ورنه ويې غوښتل چې ددوی خراج ومنی او د کلا محاصره ختمه کړي. شمس الدين د هغو خبره ومنله او جګړه يې بنده کړه.

د کلا والی لس زره ديناره ، لس خرواره غله، يو مېر عربی اسونه ، پنځوس تنه غلامان او ډېر نور سوغاتونه شمس الدين ته ورکړل ملک مس الدين هم دبکر د کلا مخورو ته سوغاتونه ورکړل او وروسته له ځلورو ورځو نه بېرته ولاړ. زمچی اسفزاري وايی چې شمس الدين له دې ځايه زميندا ور ته ولاړ او هلته يې د ملک شاهناه زوم، ميراناه ، چې په مستونګ او دخاسک په چونې باندې د شمس الدين ديرغل به وخت کې تښتېدلی و ، ونيو او ويې واژه. خو سيفی بيا د ميرانشاه به باره کې وايی چې هغه له خاسک نه مخامخ سيستان ته ولاړ او هلته بيا د شمس الدين يوه نوميالی سالار ، محمد نهی ، وواژه.

سيفی ليکی چې يوه ورځ ميرانشاه او دهغه ټولو خپلوانو او عزيزانو په يوه باغ کې مېله جوړه کړې وه او د سرو شرابو درنګينو پيالو به شرنګ يې دزړه زنګ لرې کاوه . چې محمد نهی له پنځو سوو مېړونو سره يرغل پرې وکړ . خونړې جګړه ونته. خپله ميرانشاه په جګړه کې ووژل شو او زوی يې ، سالار، دمن ګرفتار کړ او وروسته يې هغه هم وواژه.

د ميرانشاه مشر ورور، ملک تاج الدين، چې له ملک شمس الدين سره په تکناباد کې هغه وخت يو ځای وی و چې شمس الدين اول ځل په (افغانستان ) باندې ديرغل په نيت هلته تللی و ، له شمس الدين نه جلا شو . په مستونګ کې يې د شمس الدين حاکم ، غوري سپهسالار ، وواژه او په مستونګ کې يې خپله پاچا يې اعلان کړه. سيفی وايی کله چې ملک تاج الدين قدرت ته ورسېد ډېر ژر يې دافغانی ميړونو يو لوی پوځ جوړ کړ چې دټولو شمېر يې لس زرو ت رسېده. سيفی دلته دهغې جګړې يادونه هم کوی چې ، ظاهراً ،دترينو قوم د ملک

شمس الدين له يوه سالار سره کړې ده او ملک شمس الدين هم ورګډ شوی دی.

کله چې د ملک شمس الدين يو لوی سالار د يوه خاص ماموريت په ترڅ کې د مستونګ به حدودو کې د بينی کاو په نامه يوه ځای ته ور نژدې شو ، نو د هرتز تری [ترين] (۹۲) له قوم سره يې پداسې وخت کې جګړه پيل کړه چې هرمز په خپله خيمه کې له مطربې سره د شرابو پيالې په سر اړولې. خو کله چې د جنګی ميړونو او اسونو ځوږ او د نغارې او شپيلۍ غږ کړ ، د هرمز له غږ سره سم (پوره دوه زره افغانی ميړونه چې د شنو زمرو په څېر حملې او وژلو ته تېک ناست وو ، ور ووتل. هرمز لکه د پولادو غر خپل زين کړی اس ته ور پوته شو. هندوستانی توره يې راوغورځېده . (۹۳) خو زور يې ونه رسېد او په شاولاړ. پدې وخت کې د مستونګ نوی واکدار ، ملک تاج الدين چې بينی کاو ته د مغولی واکدار ، نکودر ، مخې ته ورغلی و او د هرمز په حال خبر شوی ؤ . د هرمز مرستې ته ور ووت تو له ورځ جګړه روانه وه هو د د شپې له راتګ سره بنده شوه او هر څوک په خپله مخه ولاړل.

په کال ۶۶۲ هجري کې ملک شمس الدين په تيرايانو يرغل وکړ. سيفی وای چې تيرايان (په لوړو غرونو او ډزرو ګرانو ځايونو کې ميشته وو او نه يې هيڅکله هيڅ پاچا ته باج او خراج ورکړی و او نه يې هيڅ وخت د چا اطاعت منلی و. ) (۹۴) ملک شمس الدين پوره دوه نيمې مياشتی ورسره وجنګېد و او په پای کې تيرايانو خپلې کلاوې د هغه کوټوالانو ته ور تسليم کړې. شمس الدين د تيرايانو څاوري په خپلو عسکرو وويشل او خپله له ډېرو زياتو غنايمو او اسيرانو سره هرات ته ولاړ.

ملک شمس الدين په کال ۶۷۶ هجري کې به تبريز کې مړ شو او پرځای يې زوی ، کر ملک شمس الدين په تخت کښېناست. د غزنی و هرات د ولايتونو ټول واليان ورغلل او د هغه اطاعت يې ومانه ، مګر د کندهار حاکم د اکار ونه کړ او ځکه نو کشر ملک شمس الدين کلکې جګړې ورسره وکړې.

داوو د هغو مطالب اساسی ټکی چې د سيفی د تاريخنامې په ديارلسو فصلونو کې د (افغانستان) سد حالاتو په ارتباط راغلی او موږ د لوستونکو کار د آسانتيا د پاره د لته په ښايسته مختصر ډول ، خو داسې ثبت کړل چې د مفهوم به لحاظ څه کمی پکې رانه ی. پدې مطالبو کې د هغه وخت د پښتنی ټولنې د سياسی او اجتماعی ژوند په باره کې يو شمير ارزښتناکه ټکي راغلي او موږ په شپږم فصل کې ځانته بحث پرې کړی دی. دلته يو ازې دومره وايو چې په تري ، بينی کاو ، شال، مستونګ ، دوکی، کهيرا ، ساجی او بکر او د (افغانستان) په نورو برخو کې له پښتنی مشرانو او د کنکان او نهران افغانانو له لويانو سره د ملک شمس الدين او د هغه د پوځی مسرانو او همکارانو د جګړو او نورو مربوط حوادثو تشريحات چې اساسی ټکی يې لږ وړاندې راواخيستل شوی ، په اومه هجري پېړۍ کې به يوه پراخه ساحه کې د پښتنو د هستو ګنې ښکارندوی دي او داهم ښيي چې په شپږمه او اومه هجري پېړۍ کې يوه ښايسته لويه سيمه د (افغانستان) په نامه ياده شوې ده.

په تاريخنامه کې يو شمېر متفرقې يادونې هم د سيفی د وخت په (افغانستان) او ړر څېرمه سيمو کې د پښتنو په ارتباط راغلي دي.

کله چې مشر ملک شمس الدین کرت په کال **۶۴۸** هجري کې له هرات نه د مستونګ دلاندې کولو په نیت خوځيږی، په لاره کې له سیستان، فراه ، اسفزار او غور نه دنورو تر څنګه ډېر پښتانه جنګی مېړونه هم ټولوي او کله چې تکناباد ته رسيږي، هلته يې په لښکر کې دیښتنی جنګی مېړونو شمېر دومره زيات دی چې ملک شمس الدین ښځی خاص قوماندان ورته ټاکی او هغه د (افغانستان) یو لوی مشر ملک تاج الدین دی چې همدلته په تکناباد کې له ملک مس الدين سره ملګری شو. (**۹۵**)

کله چې چنګېزي شهزاده یسور له تکناباد نه د سیستان د یرغل په نیت خوځيږی، هغه هم له دې سیمې نه ډېر زیات جنګی مېړونه راټولوی او د تاریخنامې له متن نه د اسې ښکاري چې په هغو کې پښتانه هم شامل دي، ځکه کله چې یسور له دغه یرغل نه بېرته راګرځی او ځو ورځې ږ خوښی جشنونه جووړوي، پښتنو مشرانو او لویانو ته ښځی خاصه توجع کوي و ډېر یې غټوي.

د کندهار دتېري په سیمه کې چې تر اوسه هم په همدې نامه یادېږی، ددغه ځای دیوه لوی مشر ، الما ر افغان او دملک شمس الدين کرت د ضواوو تر منځ جګړې او نور تذکرات. چه تفصیل یې لږ وړاندې راغی ، ددې ښکارندوی دي، چې کندهار له ډېر پخوانه د پښتنو ټاټوبی دی.

د سیفی پر تاریخنامې علاوه، یو شمېر نور آثار هم ، ددې خبرې مؤید دي چې د کندهار په ولایت او حدودو کې له ډېر پخوانه پښتانه آباد دي.

په روضات الجنات کې (تألیف: **۸۹۷-۸۹۹** هجري ) کندهار د پښنو ټاټوبی بلل شوی و پکې راغلی چې ددغه ولایت او سپدونکي افغانان هست دي. (**۹۶** ) بیا لیکی چې (دکندهار دولایت او سپدونکی افغانان دي او له دې ځایه مریان هرات ته بیول کېږي) (**۹۷** )

عبدالرزاق سمر قندی هم په مطلع السعدین کې (تآلیف: **۸۷۲-۸۷۵** هجري) دکندهار په سیمه کې پښتانه خپاره ګڼی او لیکی:

(خبر راغی چې د قندهار ملک سیفل زوی ا ملک محمد......یو بل سره جګړې کوي...او یو شمیر افغانان غلو په ګرمسېر او د قندهار په شاوخوا کې ان د سند د سیند تر غاړې پورې خلک په فغان زاوستي دي. ) ( **۹۸** ) سمر قندی یو بل ځای دآل مظفر دواکداری دوخت د پېښو په لړ کې لیکی چې شاه شجاع وروسته د کرمان له مهماتو نه د ګرمسېر افغانانو ه متوجه شو او (څرنګه چې د ګرمسیر ولایت ډېر آباد و ، پادشاه حکم وکړ چې باید افغانان منظمه مالیه ور کړي، که نه وي نو هر کال به زر مېړونه یرغل پرې کوی. افغانانو د څه تخفیف غوښتنه وکړه، مګرونه منل شوه او داسې فیصله وشوه چې باید هر کال د خراج بهه ډول مالیه ور کړي(**۹۹** )

په راتلونکي فصل کې به وګورو چې په تذکرةالابرار والاشرار، ریاض المحبت او خلاصة الانساب کې هم کندهار له ډېر پخوانه د پښتنو ټاټوبی ګڼل شوی دی.

تواریخ حافظ رحمت خانی هم دا خبره تائیدوي او لیکي چې (ملک تاج الدین ستر مېړه او دبرم خاوند و. کله چې خشي قومونه یعنې یوسفزي ګګیاني او ترکاني د قندهار په سیمو کې د ګاړې ، د نشکي، ډوک او ډاګ په سیمو کې او سېدل ټول د هغه تر فرمان لاندې او باتع وو. ) (۱۰۰) په تواریخ کې نور داسې مطالب هم راغلي چې کندهار له پخوانه د پښتنو ټاټوبی بولي.

ځینو مؤرخینو دافغانستان په شمالي سیمو په تېره بیا دبلخ په شاوخوا کې ، د ځینو پېښو دپیان په ضمن کې هم دپښتنو یادونه کړې ده.

عبدالجبار عتبی (مرګ: ۴۲۷ هجري) وایي چې سلطان محمود دا یلک خان له قواوو سره د مقابلې دپاره د نورو تر څنګه افغاني جنګي مېړونه هم راټول کړل. دی لیکي:
( ایلک خان له پنځوس زره مېړونو سره له جیحون (آمو ) نه تېر شو.... او دراتګ خبر یې په طخیرستان (تخارستان) کې سلطان (محمود ) ته ورورسېد. (هغه) سمدستي ولېږدېد او بلخ ته ولاړ چې ددوی طمع له هغو نواحیو نه وشکوي او د څوري او وښو لار پرې وتړل شي ، او دجګړې بندوبست یې وکړ او د ترک او خلج او هند او افغاني د قومونو او د غزله طایفې نه یې ډېر لښکر راټول کړ او دبلخ په څلور فرسنګې کې د مرخیال په پله....پیاده و ) (۱۰۱)

دا پېښه ابن اثیر هم په کامل کې ثبت کړې (۱۰۲) او وروسته رشید الدین به جامع التواریخ کې داسي لیکلې ده.

سلطان محمود له تخارسان نه (سمدستي روان شو او بلخ ته ولاړ... او د ترک او خلج او هندو او افغاني قومونه او دا غوز مېړونه یې ډیر زیات را ټول کړل ) او جنګ ته ورووت. (۱۰۳)

جو یني هم کله چې په کال ۷۵۸ کې دمروې په یوه پېښه غږیږي، هلته د هغو افغانانو یادونه کوي چې مغولي جرنیلانو ، ظاهراً ، له شاوخوا سیمو نه راټول کړي دي. جویني لیکي:

(....د تالقانو له حدودو نه قراچه نوین دهغه ځرې شو او له یو زر سپرو او پیاده وو سره ناڅا په مروې ته راغی او بیا یې په زخمونو مالګه و دوړوله او هر څوک چې په لاس ورغی ویې واژه.....او په هغه پسې قونڅو نوین له سل زره خلکو سره را ورسېد او عذابونه او شکنجې یې پیل کړې او غزنوي خلجیانو او افغانیانو چې مخې ته یې اچولي وو ، داسې نا دودې پیل کړې چې ساری یې چا نه ولیدلی (۱۰۴) ځینو ته به یې اور اچاو او ځینې به یې په نورو شکنجو وژل... ) (۱۰۵)

کومې یادونې چې تر دې ځایه وشوې ، اکثره د سند دسیند د غربي پلو د پښتنو په باره کې وې. خو په پخوانو لیکل شوو اسنادو کې له ډېر قدیم نه دهغو پښتنو یادنې هم وې دی چې د پښتونخوا په امتداد له اباسیند نه پورې غاړه پراته دي.

پښتانه په سند کې:

محمد قاسم فرشته وايي چې يخ حميد لودي ان د غزنويانو د سلطنت له تأسيس نه پخوا لا په ملتان کې والي و او د دغو سيمو افغانان يې په پوځي چوڼيو کې ددې د پاره ځای پر ځای کړل چې په لمغان او ملتان باندې د تېريو او يرغلونو مخه ونيسي. فرشته وايي له همدې امله (د سبکتګين پاليسي داوه چې ، هر څنګه کيږي ، د شيخ حميد په سيمو باندې له يرغلونو ځان وژغوري. ) (۱۰۲)

يو بل معتبر او پخواني اثر چې د اباسيند په غربي سيمو په تېره بيا په ملتان او دهغه ځای په شاوخوا سيمو کې د څورلسمې ميلادی پېړۍ په او له نيمايي کې د پټنو يادونې کووي او په حالاتو يې يو څه رڼا اچوي ، هغه د ابن بطوطه سفرنامه ده. بطوطه وايي:

(شاه افغان د سند د ملتان په ولايت کې ياغی شو او دهغه ښار امير يې چې بهزاد نومېده وواژه. څرنګه چې هغه [محمد اه تغلق] له اه افغان سره د جګړې د پاره عسکرو د تياري امر وکړ او څنګه چې (شاه افغان) ته معلومه وه چې مقاومت نه شی کولی نو خپلو اقوامو ته چې په لوړو غرونو کې اوسېږي ، ورغی. سلطان دې خبرې ډېر زيات په غوسه کړ او امر يې وکړ چې دهغه په قلمرو کې دې ټول افغانان ونيول ی. دا امر د قاضی جلال د مخالفت سبب و. قاضی جلال له افغانانو سره د کنبايې (کمبې) او بلوزرې ښار ته نژدې ميشت و. سلطان چې افغانانو د قلع و قمع فرمان صادر کړ، ملک مقبل ته يې هم يو ليک واتاو. په ليک کې ملک مقبل ه چې د جزرات (ګجرات) او نهر واله په سيمو کې وزيرو ، هدايت ورکړل شو چې قاضی جلال او دهغه اطرافيان په يوه بهانه ونيسي..قاضی جلال د پاچاهی دعوه وکړه او د سلطان عسکرو ته يې ماته ور کړه. ددولت آباد افغانانو هم بغاوت وکړ. سلطان خپل نايب ، نظام الدين ته امر وکړ چې د ملک مل زوی او ددولت آباد نور افغانان ونيسي...خو خبره بل راز شوه...افغانانو په نظام الدين او دهغه په مېړونو حمله وکړه ، ډير يې ورنه ووژل او خپله نظام الدين يې ونيو. بيا ښار ته ننوتل خزانې يې ونيولې او د ملک مل زوی يې د خپل واکدار په حيث وټاکه..کله چې د کنبايې او دولت آباد د پېښنو خبر سلطان ته ور ورسېد ،.....خپل زوم اعظم ملک بايزيد يې له څلور زره جنګی مېړونو سره جنګ ته ولېږه. [خو] د قاضی جلال لښکر ماته وکړه...سلطان [محمد شاه تغلق] خپله له لښکر سره ور ورسېد. قاضی جلال ټينګارونه وکړی او له يو شمېر مېړونو سره وتښتيد....[او] په دولت آباد کی د ملک مل زوی ناصر الدين سره يو ځای شو. سلېان پخپله له لشکر سره پسې ورغی...[ياغيانو] ماته وکړه. د ملک مل زوی او قاضی جلال..ددويقير کلا ته بناه يووړه. (۱۰۷)

ابن بطوطه وروسته دولت آباد ته ځی. هلته د ښار د بېلو بېلو برخو د معرفي په لړکې ددويقير په کلا هم غږيږی او بيا د ملک مل د زوی او قاضی جلال يادونه کوي او ديوه حکايت په ضمن کې خپله د ملک مل او يوه بل پښتانه ، چې ددويقير په کلا کې ورسره بندی و ، نومونه اخلی او ليکی چې (ملک خطاب افغانی ماته حکايت وکړ چې يو وختی د دغې کلا [يعنی دويقير] په کوهی کې چې د مږو د کوهی به نامه ياديږی بندي وم. ده ويل هره په به مږی راتلې چې ومې خوري او ما به مجادله ورسره کوله. [ په پای کې سلطان] له کوهی نه راو

ایستم او ددې خبرې دلیل داو چې ملک مل [افغان] زما خوا ته یو هکوهی کې بندی و وده هغه ګوتې او سترګې مړو وخوړې او مړ شو. (۱۰۸)

ضیاءالدین برنی هم په تاریخ فیروز شاهی کې (تألیف: **۱۳۵۷**م) د سلطان محمد تغلق د پښتنو دبیان په ضمن کې د ملتان ، دولت آباد او ګجرات دپښتنو یادونې کړې دي. دا یادونې د تاریخ فیروز اهی په ۱۸۳-۱۸۲ او ځینو نورو مخونو کې راغلی دي.

داوو هغه اسناد او مدارک چې خپله په پښتونخوا او دپښتونخوا په امتداد پرتو سیمو کې دپښتنو د حضور او سکونت یادونې پکې شوې او موږ دلته ، کلاً یا قسماً ، راواخیستې. باور دی چې به لیکل شوو اسنادو کې به پدې اوږده موده کې دپښتنو به باره کې نورې یادونې هم شوې وي. خو موږ ته به متونو کې دیو څه کر وارو به ضمن کې فقط همدا مخې ته راغلې وې او ګرانو لوستونکو ته مووړاندې کړې: (څه چې تیار هغه دیار ).

خو باید وویل شي چې به پښتونخوا کې دپښتنو دسکونت تر څنګه یوه بله خبره هم داسې یوه بحث ته ضروروت لري چې په زړو متونو بنا شوې وي او هغه له یوې سیمې نه بلې ته دپښتنو دپخوانو مهاجرتونو مسأله ده او زموږ ددې لیکنې دابل فصل په همدې باره کې دی.

د څلورم فصل یاد داشتونه:

۱ ) البته پښتانه له ډېر پخوانه هندوستان ته هم لېږدېدلي او هلته یې لوی او واړه حکومتونه جوړ کړی دي او په ایران کې یې هم یو څه موده واکداري کړې ده. خو څرنګه چې موږ دلته هغه یادونې را اخلو چې خپله دپشتنو په ملک اوله هغه سره څنګ په څنګ او نښتو سیمو کې دپشتنو په باره کې شوې دي، نوله دې امله هندوستان یا ایران ته وړاندې نه ور تېرېږو.

۲ ) د سول له نامه او موقعیت نه داسې اټکل کېدلی شي چې دا به دا او سني شم دسیمې یوه آبادي وي. شمل دپشکتیا یوه اوږده دره ده چې د ځتېي کنډو او ملکی تر منځ پرته ده او اوسېدونکي یې ځدراڼ دي. کوم سیند چې پدې دره تیر وی هغه هم دشمل په نامه یادیږي.

۳ ) حدودالعالم من المشرق الی المغرب ، مخ ۳۷۲.

**۵** ) رشید الدین، فضل الله ، جامع التواریخ ، ټوک۲ ، جز۴ ، مخ ۹ .۲ د حمد الله تاریخ ګزیده ، مخ ۳۹۴ ، ابن اثیر ، کامل ، ټوک ۱۲ ، مخ ۳۰۸.

۲ ) ابن اثیر ، کامل، ټوک ۱۲ ، مخ ۲۹.

۷ ) بلخی ، عنصری ، دېوان ، مخ ۳۰۸.

۸ ) طوسی، اسدی چې دابیت یې د کهبر د کلمې په باره کې د شاهد به توګه را اخیستی دی، وایی چې کهبر په هندوستان کې دیوه ولایت نوم دی. لغت فرس ، مخ ۱۲۱، برهان قاطع هم کهبر د هند یو ولایت بولی. برهان قاطع ،ټوک ۲ ، مخ ۱۷۴۵.

۹ ) سلمان ، مسعود سعد ، دېوان ، مخ ۴۱۸.

۱۰ ) همدا اثر، مخ ۱۷۵.

۱۱ ) همدا اثر، دیباچه، مخ ۲.

۱۲ ) دا کلمه په کامل کې اوغنان لیکل وې ده. خو یقیناً دا کوم ناسخ املایي سهوه ده.

۱۳ ) ابن اثیر، کامل، ټوک ۱۸ مخ ۱۷۹.

۱۴ ) د کرمان دره چې له شمال ختیځ نه دجنوب لویدیځ په لور اوږده پرته ده، تخمین نهه کروه اوږدوالی لري.په شمال کې په سپین غره لګېږي. کوم سیند چې له دې درې نه راوزی له هغه سیند سره یو ځای کېږی چې له زیران درې نه راوزي او بیا داوزی خېل (دادځائیو یوه پښنه ده ) له کلیو نه درې کروه لرې د کرمې په سیندور ګډیږي. (راورټی ، د افغانستان او بلوچستان دیوې برخې په باره کې یاد داشتونه ، مخ ۸۲ ).

۱۵ ) ابن اثیر، کامل ، ټوک ۲۰ ، مخ ۲۱۲.

۱۲ ) فرشته، محمد قاسم ، تاریخ فرشته ، مخ ۸۷.

۱۷ ) همدا اثر، مخ ۸۲.

۱۸ ) دا په ډېر غالب ګومان هغه دره ده چې دزیران په نامه یاده شوې ده. دا دره له سپین غره نه مخ په جنوب لویدیځ امتداد لري او اوږدوالی یې پنځه کروه دی. یو کوچنی سیند چې له سپین غره نه راکوزېږي پکې تېر شوی او په پای کې د کرمان له سیند سره یوځای شوی دی. ددې درې او سېدونکی توري دي. خو یو څه ا؟؟ن کار هم پکې شته.( راورټی، همدا وړاندې یاد شوی اثر، مخ ۲۸ ).

۱۹ ) فرشته ، تاریخ فرشته، مخ ۱۰۵

۲۰ ) دا ځای په بابرنامه کې هم بیا بیا یاد شوی او د کرماش په بڼه لیکل شوی دی.

۲۱ ) ابن بطوطه ، سفرنامه ، ټوک ۱، مخ ۴۴۷-۴۴۲ .

۲۲ ) کوم مطالب چې ما دلته را اخیستی هغه د ظفرنامې په دوهم ټوک کې له مخ ۳۴ نه تر مخ ۴۱ پورې او دهمدې ټوک له مخ ۱۳۴ نه تر ۱۳۷ پورې راغلي دي.

۲۳ ) ماته پدې نامه د پښتنو دهيځ قوم او قبيلې ځرک ونه لګيده.

۲۴ ) په ظفرنامه کې دانوم ارياب ليکی شوی او مطلب يې يقيناً همدا ننني د ځاځيو اريوب دره ده چې راورټي يې هم ايرياب ليکی او داسې يې معرفی کوی:

دارياب دره پېواړ غرب ته شمالاً او جنوباً پرته او شل کروه اوږده ده. او اره ځمکه يې کمه ده خو ډېره مثمره دره ده. او سېدونکی يې ځاځی دی. ( راورټی ، همدا وړاندې ياد شوی اثر ، مخ ۸۱ ).

۲۵ ) شلوزان يا شنوزان د پېواړ شرق ته يوه لويه دره ده چې شمالاً او جنوباً پرته او ، اوه کروه اوږده ده. دا دره په شمال کې له سپين غره سره يو ځای کېږي. يو کوچنی سيند هم ورنه راوزي او د پېواړ له سيند سره يو ځای کېږي. او سيدونکی يې توري دي، هو يو څه او انکار او هغه جټان هم پکې او سيږي چې اصلی قبېله يې په پنجاب کې پرته ده.( راورټی ، همدا وړاندې ياد شوی اثر ، مخ ۸۱ )

۲۶ ) دا ځای چې په ظفرنامه کې بانو ليکل شوی همدا ننی بنو دی.

۲۷ ) د بيرونی په يوه رساله، الجواهر ، کې چې په تخمين ۱۰۴۰ ميلادي کې ليکل شوې ده، د ( تغر ) په نامه يو ځای ياد شوی او موقعيت يې د پښتنو به سيمه کې ښودل وی دی. بېرونی ليکی چې يو ډول سره زر د افغانانو په تغر کې پيدا کېږی. (بيرونی ، الجواهر ، مخ ۲۳۳ ) .

کېدی شی چې د بيرونی (تغر ) همدغه د ظفرنامې او بابر نامې د نغر سيمه وي. ښايی دالجواهر کوم ناسخ د نغر د کلمې اولې برخې ته ، سهواً ، ديوه ټکی پر ځای دوه ټکی ايښی وي او له نغر نه يې تغر جوړ کړی وي. که خبره داسې وي ، نو نغر به پوره زوړ نوم وي.

۲۸ ) دا کلمه به ظفرنامه کې پنيان ليکل شوې اصل يې يقيناً پؤيان دی. پړيان د حمکنو يوه پښه ده او ار او سه هم دهمدې سيمې په شاوخوا کې پراته دي. ځرنګه چې به فارسی کې (ړ) نشته نو مؤلف د (ړ) پر ځای (ر) او (ن) ليکلی دی. په پېښور کې تر اوسه هم کله (ڼ) د (نړ) په شکل ليکل کيږی.

۲۹ ) دا کلمه په ببخی غالب ګومان کرلانی ده. خو په ظفرنامه کې کلانی او په بابر نامه کې کرانی ليکل وې ده او ددې خبرې دليل دادی چې (ڼ) نه دظفرنامی په ژبه کې ته او نه د بابر نامی په ژبه کې او ځکه نو په (ر) او (ل) چې (ڼ) ته ډير نږدې غږونه دي ښودل شوي دي.

۳۰ ) معظم شاه ، تواريخ حافظ رحمت خانی ، مخ ۸.

۳۱ ) د تاریخ گردېزی محشی ، عبدالحی حبیبی، دا ځای د چار کارو اوسنی هو پیان بولی. تاریخ گردېزي، مخ ۴۳۸.

۳۲ ) گردېزي ، عبدالحی بن ی‌حاک ، تاریخ گردېزی ، مخ ۴۳۸.

۳۳ ) معظم شاه ، تواریخ حافظ رحمت خانی ، مخ ۵.

۳۴ ) همدا اثر ، مخ ۳۵.

۳۵ ) همدا اثر، مخ ۴۲.

۳۶ ) ډورن ، برنارد ، دافغانانو تاریخ ، یادداشتونه ، مخ ۷۲.

۳۷ ) نسوی ، شهاب الدین محمد ، سیرت جلال الدین منکبرنی ، مخ ۹۱.

۳۸ ) سمر قندی ، عبدالرزاق، مطبع السعدین ، مخ ۲۳.

۳۹ ) بیهقی ، خواجه ابوالفضل ، تاریخ بیهقی ، مخ ۲۵۲.

۴۰ ) همدا اثر ، مخ ۲۲۰.

۴۱ ) همدا ، اثر، مخ ۲۷۱

۴۲ ) همدا اثر، مخ ۴۲۵.

۴۳ ) همدا اثر ، مخ ۴۹۹ .

۴۴ ) فخر مدبر ، مبارکشاه ، آداب الحرب ، مخ ۳۱۲-۳۱۵.

۴۵ ) هروی ، نعمت الله ، مخزن افغانی ، ټوک ۱، مخونه ۱۱۹-۱۱۲

۴۶ ) ډورن ، د افغانانو تاریخ ،یاداشتونه ، مخ ۷۹ .

۴۷ ) بکران، محمد ، جهان نامه ، مخ ۷۳.

۴۸ ) گانکوفسکی ، د پاکستان خلک ، مخ ۱۳۰.

۴۹ ) ابن بطوطه ، سفرنامه، ټوک ۱ ، مخ ۴۴۶.

**۵۰** ) همدا اثر ، همدا ټوک ، همدا مخ.

**۵۱** ) همدا اثر ، همدا ټوک ، همدا مخ. **۵۲** ) معظم اه ، تواریخ حافظ رحمت خانی ، مخ **۵**.

**۵۳** ) همدا اثر ، مخ ۷.

**۵۴** ) همدا اثر ، مخ ۹-۸.

**۵۵** ) همدا اثر ، مخ **۳۶**.

**۵۶** ) حدود العالم ، مخ **۳۷۹**.

**۵۷** ) همدا همدا مخ.

**۵۸** ) همدا اثر، مخ **۳۲۵** .

**۵۹** ) عتبی ، تاریخ یمینی ، مخ **۳۳**.

**۶۰** ) ابن اثیر ، کامل ، ټوک **۱۵** ، مخ ۱۰۲.

**۶۱** ) رشید الدین ، فضل الله ، جامع التواریخ ، مخ ۱۲.

**۶۲** ) فرشته ، محمد قاسم ، تاریخ فرشته مخ **۴۳**. **۶۳** ) میر خواند ، روضة الصفا ، ټوک **۴** ، مخ **۹۲**.

**۶۴** ) بیرونی ، د هند تاریخ ، ټوک۱ ، مخ **۱۹۹**.

**۶۵** ) همدا اثر ، همدا ټوک ، مخ **۲۰۸**.

**۶۵** ) په پخوانو آثارو کې د (دهک ) کلمه دیوه ځای دنامه به حیث بیا بیا راغلې ده او داسې ښکاري جې پدې آثارو کې بېل بېل ځایونه ددهک به نامه یاد شوی دي. خو کوم ځای چې د غزنویانو د عصر ځینې مؤلفین او شاعران لکه عبدالحی گردېزی او مسعود سعد سلمان ددهک په نامه یادوی دهغه موقعیت غزنی ته نژدې ښکاري. اوس د غزنی او زرملې تر منځ یو ځای ددهک په نامه یادېږی خو سړی په کامل یقین نه شی ویلی چې دا به هغه د گردېزي او مسعود سعد دهک وی.

خو کوم ځای ته چې بېرونی دهک وایی هغه دالصیدنې د ناشر او محشی ، زکی ولیدی توغان ، په عقیده دافغانستان ننني ډکه ده چې دننگرهار دولایت په نهایی شرقی برخه کې د خیبر دلویې لارې په سر پرته ده.

۶۷ ) بیرونی ، صیدنه، انگریزی ترجمه ، مخ ۲۴.

۶۸ ) د صیدنې انگریزی مترجم دا کلمه (افغانستان) لیکلې ده خو په اکثرو عربی نسخو کې (جبال الافغانیه) راغلې ده او صحیح شکل یې هم همدا وروستی ښکاري.

۶۹ ) بیرونی ، صیدنه انگریزی ترجمه ،مخ ۱۷۳.

۷۰ ) بیرونی ، الجواهر ، مخ ۹۲.

۷۱ ) پدې نسخه کې دا کلمه جبال الافاعنیه لیکل شوې ده خو د البیرونی او نورو له لیکنو او د نخبةالدهر د بحث له قرینې او په عین عبارت کې له نورو یادو وو نومونو نه څرگندیږی چې اصل یې جبال الافغانیه ده.

۷۲ ) د مشقی ، نخبةالدهر ، مخ ۲۰.

۷۳ ) رونی ، دیوان ، مقدمه ، مخ څلور.

۷۴ ) همدا اثر ، مخ۱.

۷۵ ) بېرونی ، صفت المعموره، مخ ۳۰.

۷۶ ) بېرونی ، دهند تاریخ ،ټوک۱ ، مخ ۲۰۲.

۷۷ ) همدا اثر ، ټوک۱ ، مخ ۲۵۹.

۷۸ ) همدا اثر ، ټوک۱ ، مخ ۳۱۷.

۷۹ ) منهاج الدین ، طبقات ناصری ، دراورټی انگریزی تر جمه ، ټوک۱ مخ ۷۲.

۸۰ ) فرشته ، تاریخ فرشته ، مخ ۴۱۰.

۸۱ ) فخر مدبر ، مبارکشاه ، آداب الحرب ، مخ ۳۱۲-۳۱۵.

۸۲ ) فرشته ، تاریخ فرشته ، مخ ۸۰.

۸۳ ) معظم شاه ، تواریخ حافظ رحمت خانی ، مخ ۳۰.

۸۴ ) همدا اثر ، مخ ۳۳.

۸۵ ) همدا اثر ، مخ **۵۲**.

۸۶ ) دا داستان د شاهنامې له مخ **۵۳۸** نه تر مخ **۵۴۴** پورې راغلی دی.

۸۷ ) فردوسی ، شاهنامه ، مخ **۵۳۸**.

۸۸ ) هروی ، سیفی ،تاریخنامه ، مخ ۲۵۰ .

۸۹ ) دا نوم به په غالب ګومان سوري وي.

۹۰ ) هروی ، سیفی ، تاریخنامه ، مخ ۲۱۰.

۹۱ ) همدا اثر ، مخ ۲۲۴.

۹۲ ) دا کلمه چې په تاریخنامه کې (تری ) لیکل شوې ده، په اصل کې ، په بېخی غالب ګومان (ترین ) ده ځکه کومه سیمه چې پدې ځای کې سیفی پرې غږیږي ، هغه له ډیر بخوانه د ترینو ټاټوبی دی. لکه څنګه چې موږ ددې لیکنی د دریم فصل به پای کې په (ضروری یادونه ) کې او همدغه راز په شپږم فصل کې خبری پرې کړي دي، د ترینو د قوم نوم د پښتنو د بل هر قوم له نامه نه پخوا به اسلامی آثارو کې راغلی دی.

۹۳ ) هروی ، سیفی ، مخ ۲۷۱.

۹۴ ) همدا اثر ، مخ ۳۰۲.

۹۵ ) همدا اثر ، مخ ۲۰۰.

۹۶ ) چاسفزاری زمچی ، روضات الجنات ، ټوک ۱ ، مخ ۳۴۱.

۹۷ ) همدا اثر ، مخ ۱۱۲.

۹۸ ) سمر قندی ، عبدالرزاق ، مطلع السعد ین ، دوهم ټوک لومړی جزء ، مخ **۳۵۲**.

۹۹ ) همدا اثر ، د کابل د انجمن قلمی نسخه ، مخ ۲۴۱.

۱۰۰ ) معظم شاه ، تواریخ حافظ رحمت خانی ، مخ ۲۲.

۱۰۱ ) عتبی ، تاریخ یمینی ، د جرفادقانی ترجمه ، مخ **۲۸۵**.

۱۰۲ ) ابن اثیر ، کامل ، ټوک **۱۵** مخ ۳۰۱.

١٠٣ ) رشید الدین ، فضل الله ، جامع التواریخ مخ **١٥٢-١٥١**.

١٠۴ ) پدې عباراتو زما سربنه خلاص نه و او ښایی چې پښتو ترجمه یې بیخی صحیح نه وی.

**١٠۵** ) جو ینی ، علاءالدین ، تاریخ جهانکشای ،مخ**١٣٢**.

١٠٦ ) فرشته ، تاریخفرشته ، د برګز انګریزی ترجمه ، ټوک،١ ،مخ**٦**.

١٠٧ ) ابن ، بطوطته ، ټوک١، مخونه **٥٧٨-٥٧٥**.

١٠٨ ) همدا اثر همدا ټوک ، مخ **٢٣٣**.

## پښتو اَرپوهه(Etymology) له مورګنستيرنه تر اېلفنباينه

دا دی، د دې لپاره چې د نوې پښتو ژبپوهنې مينه وال د دغې ارزښتمنې او ستونزمنې سکالو اوبيايې له لومړي( 1927 کال) چاپه تر دويم کره او غځېدلي( 2003 ) چاپه، د شپړاو ياکلن بشپړتيايي بهير يو لنډجاج هومره واخلي، د ښاغلي اېلفنباين د سريزې ژباړه په لاندې ډول وړاندې کېږي {:

همداچې ګيورګ مورګنستيرن( Georg Morgenstierne ) پر 1927ز. پښتو اَرپوهيزه وييپانګه( An Etymological Vocabulary of Pashto )خپره کړه، سم له سمونې يې ديوه داسې ارت و بيرت دويم چاپ لپاره دتوکو پر راټولونه لاس پورې کړ چې وييونه يې هم ښه ډېر وي اوهم پر اېتېمولوجيکي کنډه پوره برابر. دی له يوه اوږده او کارنده ژوند سره د وسمهالو آرياني ژبو د څېړنو د پلار او د پښتو د يوه مخکښ واکوال(اتوريتی) په توګه يوازېنی بې پرتلې ارماني(ايډال) پوهاند وو چې د دغه سترکار له توغه ووتلای شي. تر دېرشو زيات کلونه يې له هر اخځ او سرچينې څخه توکي را غونډ کړل، خو متې د 1960 کلونو په وروستيو کې چې ژوند يې نور مخ پر ځوړه وو، د خپلو توکو د اوډنې او د يوه کتاب په بڼه يې چاپ ته د تيارونې په تکل کې شو. هغه مهال ورته پته ولګېده، چې را مخته کړی کار يې په يوازې ځان تر وسې ډېر اوچت دی، نو چار ناچار د يوه همکار په لټه کې شو.
مورګنستيرن له نييل مکنزي څخه پرته بل غوراوی و نه موند او ده هغه شپې ورځې پر پښتو پوهه پوره لاسبری موندلی وو او د څېړنو په برخه کې يې څه ناڅه له استاد سره سيالي کولای شوه. هغه وه چې د اويايمو کلونو په لومړيو کې يې ورسره د همکارۍ اوږه ورکړه، هغه هم زياتره په ليک ليکاني ډول. لومړی د اوسلو= لندن او راوروسته د اوسلو= ګويتينګن تر منځ چې مکنزي دغلته پر 1975 کال د ختيزې فېلالوجۍ د پروفېسور په توګه وټاکل شو. خو پرمختګ ډېر ورو وو،ستره بری يې د مورګنستيرن د لاسکښليو پښتو وييونو د ټوليز لړ الفبايي اوډون وو؛ بې له دې چې يې پر کاغذي ځيرلو د زرګونو زرګونو يادښتونو د راټولولو لپاره کومه هڅه وشي.

په کار خو داوه چې د يوې داسې پروژې دهمکارۍ لپاره دمکنزي سر پوره خلاص کړ شوی وای، ځکه له وسمهالوآرياني ژبو سره يې لېواتيامخ پر غړند بدو وه او له منځنيو هغو، په تېره پهلوي او خوارزمي سره مخ پر ډېربدو. په دې لړ کې يې داسې نګېرله چې کېدای شي، له پښتو سره يې دا وروستنۍ بوختيا وي او بيا يې د اېتېمولوجۍ غوندې له يوې داسې سکالو سره چې د شننې په برخه کې يې د بې کچې توندې تېزې ښکالوې(بحث) لېوال وو؛ په هماغومره کچه، لکه په يو ځايي توګه د ټولو خوارزمي متنونو د شننې په تړاو.

کار پر 1978کال د مورګنستيرن تر مړينې وروسته پر ټپه ودرېد. له هغې راهيسې يې مکنزي پرمخوړنه په دې پورې تړله چې يو وړنده همکار را پيدا کاندې. پر 1987کال يې تر هغه وروسته چې دماينس پوهنتون غوښتنه ومنله،نو ما ورته ټېر وټپاوه. نوی کار هم پر 1988 ټيک د المان د څېړنيزې ټولنې( Deutsche Forschungsgemeinschaft ) د مرستې له ګرانت سره پيل شو. اټکل داوو چې دوه کاله به ورته بس وي، خو

له بده مرغه دغه اټکل خورا لنډ وخوت، په دې ډول پر 1990کال پروژه يوځل بيا پر ټپه ودرېده، سره له دې چې بشپړېدو ته ور نژدې شوې وه. د مکنزي له خوا نژدې نيمايي شوی کار يوه(لروين ته چمتو ) کاپي تياره شوې او د آرياني ژبو په لړ کې يې لار ښوده بېلګه له کمپيوټره راوتلې وه.
پر 2001کال د مکنزي له نابېره مرګ راوروسته وليدل شول چې په راپرې اېښي کار کې يې يو لړ ماتې ګوډې پاتې دي، دا سې چې پر(آره بڼه )(EtymologicalVocabulary of Pashto An ) يې جوتې اغېزې څرګند ېدې او ما و پتېيله چې نوې کار ورباندې وکړم او هغه دا چې د مکنزي ټول کړی کار بايد له سره د نوي کمپيوټر له وسمهاليز نرم اوزار(up-to-date software )او ليکډول(فونت) سره بيا کمپوز شي. همداراز يې ځای ځای د نابشپړو برخو بشپړونه او بيا د نوملېک(اېند ېکس ) او اخځليک برابرونه درواخله. په دې وروستي پړاو کې نېکولاس سېمس ويليمز Nicholas Sims-Williams د مکنزي له خوا ځينې کنبلي سرليکنيزې چارې( editorial functions ) بشپړې کړې او پردې سربېره يې د ګردې لاسکښنې بيالوستنه او د ډېرو ارزښتناکو کرونو پرځايکړه او ورسره ورسره د پايليزې لروين(کمره ) چمتو کاپۍ د چاپ او اوډ( typography and layout ) پازه پرغاړه واخېسته. د هارورډ پوهنتون پروفېسور سکېرو( P.O. Skjaervo ) هم په پوره لورېينه د لاسکښنې اډانه ولوستله او ښايسته ډېر مرستندويه وړانديزونه يې را و لورول.
ما ددې لپاره چې له آر نامه(EVP ) سره يې ښه ترا روښانه توپير شوی وي،د ګردو ګډو هاندوهڅو پايله مې A (New Etymological Vocabulary of Pashto( NEVP و نوموله؛ هرګوره په بنستيزو برخوکې تر ډېره د مورګنستيرن کار هم د منځپانګې او هم د لېلي(سبک ) او وړاندېينې له پلوه پر خپل اکر پاتې دی. په دې لړ کې ډېر سوچ وړ توکي هم راځي چې مورګنستيرن يې مخې ته له خپله انده دوې غبرګې نښې، ستورګي(* ) او پوښتنښې(؟ ) اېښې وې. هغه توکو چې په مورګنستيرن يې اړه نه درلوده، له) MK (Elfenbbein ،Mackenzie) E او (Sims-Williams SW ) او يا له سکېرو(Skjaero )سره ننبه شول. په سر او پای کې زياتونې بيا چې د قرينې له مخې باوري نه برېښېدې، په څلورګوټيزو ليند يو کې ونيول شوې. دا چې مورګنستيرن د پوره پښتو شويو هندو آرياني پورويپونو د آرې د ښوونې ټينګ پلوي وو، نو ماهم پر خپل وار دغه چاره نوره هم پسې ښه ترا وغځوله.
ددې نوې آرپوهې( NEVP )الفبايي اوډون}له a او ورسره هملړو i,o, u ,a,e پرته، هغه هم د لاتين ابېځې پر بنسټ=زيار{ پر ببوا کو(کنسوننټو ) ټيکاو لري. دغه کار د پښتو غوندې د يوې دا سې ژبې د ويپونو موندنه رااسانولای شي چې خپلواک(واوېل ) يې ښايسته ډېر ګړدودي ځېلونه(وارينټونه ) لري. (د سم سهي ابېځي اوډون(الفبايي ترتيب ) په اړه چې په نوملړ( index ) کې پر کار اچول شوی،د 107مخ يادښت وګورئ. ) دا به د سړي په مغزو کې هم راټوکي چې د پښتو وييونو انګرېزي ژباړې له آر و بنسټه هسې انګېرل شوې او په دې توګه دغه نوې آرپوهه( ) په هېڅ ډول د يوه سيند(ډېکشنرۍ ) بڼه نه شي درلودای. مورګنستيرن د يو لړ شمېر وييو ، لکه سربلونو يوځه کارونځايونه پر ګوته کړي، خو د لا زياتو مانيزو اړخونو د روښانونې په موخه د هغو وييونو د يوه سيند( چې ډېر يې په pp.5-6 کې ليکلړ شوي ) تل سپارښت کوي.

* * *

پښتو آرپوهه او تاريخي غږپوهه ( etymology and historical phonology Pashto )
ښايي، وويل شي چې نومهالې پښتو آرپوهه له اېرنېست ترومپ
(Ernst, Trumpp) سره راپيل شوې چې مخکښې پښتو پښنويې
of the Pashto or the Language of the Afghans. Tuebingen1873, reprinted Grammar)
(Osnabrük1969
يې لومړی ځل پښتو آرياني زباده کړه. ورپسې لنډه پر لنډه جېمز دارمېستېټر
(James Darmesteter) په يو لړ ليکنو کې چې په ((د پښتونخوا هاروبهار)) نومې ټولګه کې يې پر 90-
1888 چاپ ته سپارلې وې، پښتو شمال ختيزه آرياني وښووله او له لويديزو آرياني (پرسيک) ژبو سره يې د
هغې يو روښانه بريد ليکه راوکښله. په پای کې هم ويلهېلم ګايګر( Wilhelm Geiger)په خپل اثر
Lautlehre Afghanischen des Afghanischen ABAW20,1893,167-222 Etymology und) د پښتو
غږدو يونو (صوتي قاعدو) د څېړنې يو پوخ بنسټ کښېښووه چې د مورګنستيرن تر آرپوهې ( EVP,1927 )
ديوه کره اثر په توګه پاتې شو.

له 1927را هيسې مورګنستيرن کلونه کلونه ډېرې ليکنې پښتو آرپوهې او تاريخي غږپوهې ته ځانګړې کړې.
نوې آرپوهې(NEVP) دده هغه ګرد آرپوهيز توکي رانغښتې او يوازې هماغه يو لړ يې نه دي را اخېستي چې
نور پخپله ده ته د سکتې(قناعت) وړ نه ول. خو تاريخي غږپوهه يې دلته بې له هغې اړينه نه وه. ددغې برخې
لپاره لوستونکي ته هغه خورا غوره لنډيز (Skjaer Compendium 1989, 4.1.7) o
LinguarumIranicarum
پر ګوته کېږي؛ دا لنډيز، هرګوره د مورګنستيرن د ستر ارت و بيرت کار پر بنسټ ټيکاو لري.

غږ ليک آړه (Phonetic transcription) په دې کتاب کې کارېدلې غږآړه(فونيميکي ابېڅې) هماغه ده چې
څه ناڅه پرنړيوال کچ نن سبا دود لري او د ولفګنګ لېنتڅ( Wolgang Lentz ) له خوا ډېر کلونه
مخکې(پر1936 ) د وړانديز شوې هغې پر بېلګه ټيکاو لري.

مورګنستيرن هم ورته ابېڅې په خپله آرپوهه کې کارولې او کره کړې ده. .(همداراز مکنزي، يوه کره پښتو،
Pashto, BSOAS 221959, 231-5Skjaero,1989,4.2.1.3,Elfenbein, Mackenzie,A standard
Phonologies of Asia and Africa,ed.by Alan S.Kaye,11, Winona Lake, Pashto Phonology, in
(.1997, 36.9

پښتو بېواک Pashto consonants (جدول) په پاسني لښتيليک کې د کږو ليندېو ترمنځ (ف، ق) غږونه چې
په عربي او پارسي پورويېونو اړه لري، ځينې(په تېره ملايان او لوی چاري) د ځانښوونې له مخې سم ادا
کوي، که نه، په ټوليز ډول ف پر پ اړول کېږي او ق تر ګ يا ک وروسته پر ک. دويم ډول يا ستونيز يا ګړنسي n
د ټوليز n بلغږ(الوفون) دی. د تم- مښليو غاښيزو څ، ځ /c, j/ او ساييزو غبرګژبيز ښ، ږ /x, g/ په اړه
څرګندونې دلاندېنی سکالو په ترځ کې لوستلای شئ.

ګړدودونهDialects له هغو راز راز لارو رودو څخه چې له مخې يې د پښتو ګړدودونو ډلبندي رامنځته کړ شي، يوه هم د بشپړې سکتې(قناعت) ور نه برېښي(په دغه تړاو دې سکېرو,4.2.1.1.5 1989هم وکتل شي)....
بيا هم که پخوانی جغرافيايي پښتو ګړدودو بش د بېلابېلو سياسي= اداري لاملونو پر بنسټ باوريتوب له لاسه ورکړی، تېرنی هغه يې پرځای پاتې دی. له دغه پلوه د ګريرسن) په Vol.X of the Linguistic Survey of India (Grierson 1921) کې وړاندې شوې نقشې هغه تولیز ارزښت خوندي ساتلی دی. هرګوره، له دې سره سره دا هم هېرول په کار نه دي چې پښتو ګړدودي برید ليکې يا اېزوګلاسونه( isoglosses) زياتره جغرافيايي او تېرني پولې رنګوي.( دا سې بر ښني چې اېلفنباين د شارل کيفر د 1975کال پښتو ګړدود پوهنه هېڅ کتلې نه ده !)
مورګنستيرن پر دې ټينګ وو چې تر کېدونه(امکانه) پورې يو ګړدود وبش رامنځته کاندي، خو له بده مرغه يې په دې تړاو بې له دې بل غوراوی نه لاره چې دلته او هلته له پوښتنوالو څخه پر لاس راوړو توکو ډډه ولګوي.

مکنزي او ما په چو په خوله هغه پوره جوتې ناسمې ور سمې کړې دي، خو بيا هم په ټوليز ډول موږ دواړو هم له دې پرته بل بلونج(بديل) نه درلود چې تر ډېره د مورګنستيرن اړوندې څېړنې پر خپل ځای پرېږدو.
پښتو ګړدودونه د څلورګونو بېواکو /څ، ځ، ښ، ږ/ c,j, x, g پر بنسټ پر څلورګونو ډلو وېشل شوي دي...

پښتو ګړدودي ډلې}تر کوم ځايه چې راته پته لګي، ښاغلي اېلفنباين دلته د پرو فېسور سکېرو ډلبندي هو بهو را اخېستې او هغه هم پرخپل وار ښايي، د مشراستاد مورګن ستيرن ځينې ناکره شوي يادښتونه ځانته مخبېلګه کړي وي. نو ما وړنده وبلله چې د شارل کيفر د هغې په رڼاکې يې يو څه رالنډه او کره کړم= زيار{
منځنۍ ډله(منځنۍ پښتو): )له جلد که تر درونتې پورې چې زياتره غلجي تېرونه را اخلي(

/c=/ts/ j= /z/ x= /x/ g= /g شمال ختيزه ډله(زږه يا سخته پښتو): (له درونټې تر اټکه د کابل سيند دواړو غاړو ته پراته شينواري، ساپي، مومند، ترکاني، يوسفزي... رانغاړي)

/c=/s/ j= /z/ x= /x/ g= /g سوېل لويديزه (نرمه پښتو):
(له جلد که مخ پر لويديځ او شمال لويديځ د ايران او تورکمنستان تر پولو او بيا له بولانه تر ګلکڅه پورې)

/C= ts j= dz x= /s/ g= /z

سوېل ختيزه (کرلاڼۍ=نرمه پښتو): )وزير، مسيد، بيټني، دوړ، مروت، خټک...)

/c= ts j= dz, /z/ x= /s/ g= /z

* * *

ماته په کار ده، دهغې مرستې او لاسنيوي مننه وکړم چې په دومره بښاندی (سخاوتمندی) سره د دغه کتاب د کښنې په بهير کې راباندې پېرزو شوې دي. په ځانګړي ډول د ماينځ پوهنتون له پروفېسور ګېورګ بودروس Buddruss Georg څخه چې د 1988 - 1990 کلونو لپاره د المان څېړنيزې ټولنې د مالي مرستې د لاسته راوړنې لپاره وسيله شو او پخپله له دغې ټولنې څخه د هوکړې له له کبله؛ داوسلو پوهنتون له پروفېسور فريدريک توردارسن FridrikThordarson څخه، له مورګنستيرنه د راپاتې(پس مرګي) پاڼو د را تيارونې له کبله؛ دهارورد پوهنتون له پروفېسور پ. و. سکېرو چې د لاسکښنې د اډانې ( draft ) د لوستلو زيار يې پرځان وګاله او ډېرې ګټورې شننې يې راونه سپمولې؛ د لندن پوهنتون د ختيځپوهنې او افريقايي څېړنو له ښوونځي(SOAS ) څخه د غورو کمپيوټري اسانتياوو له کبله چې د کېمبرېج د لرغوني هند او ايران په ځانګه کې ټيکاو لري؛ او د ځانګې له غړي دوکتور رېموند الچين څخه زما د کاراسانۍ لپاره. په پای کې، خو په پوره مينه د دوکتور ګنر نېکلسن مننه اړينه بولم چې د يوه برلاسي کمپيوټر پوه په توګه مې د لاسکښنې د تيارونې په ټول بهيرکې پر يوه پښه سرته ولاړ وو؛ بې دده له مرستې نا شونې وه چې دغه اثر تر برياليۍ پايلې ورسي.

(په پای پای کې) داخپله پازه ګڼم چې د دواړو سترو آريانپوهانو ،ګېورګ مورګنستيرن او نييل مکنزي درنو ارواوو ته د درناوي سر ټيټ کړم.

ج. اېلفنباين

## په پښتو کې د (ی) ګانو سمه کارونه

په پښتو ژبه کې (ی) ګانې د شکل یا بڼې له پلوه په پنځه ډوله دي چې پخوا د پښتو ژبپوهانو او لیکپوهانو له خوا دا شکلونه غوره شوي دي او که په اویا یمو کلونو کې د باړه ګلۍ د سیمینار پرېکړه ورسره یوځای کړو ، نو دا شمېر اوس شپږو شکلونو ته رسېږي ، دا پنځه یا شپږ شکلونه په حقیقت کې د څلورو بېلابېلو اوازونو ښکارندویي یا استازي کوي چې دوه یې خپلواک غږونه یا واولونه دي او نور یې د ژبپوهنې د یوې دودیزې نومونې یا اصطلاح له مخې غبرګغږونه یا دیفتونګونه دي.

د پښتو (ی) ګانو دا څلور اوازونه په حقیقت کې څلور مختلف اوازونه دي چې د پنځو نږدې همشکله ګرافیمونو په بڼه افاده کېږي. له همدې کبله دا مختلف او بېلابېل اوازونه اوازونه په دودیز ډول د یوه ګرافیم (ی ګانو ) په نامه یادېږي ، که په پیل کې د پښتو غږونو لپاره دلیکنښو یا ګرافیمونو د ایښودلو پرمهال دې څلورو بېلابېلو اوازونو ته بېل بېل شکلونه غوره شوي وای نو نن به د پښتو (یاګانو ) په لیکنۍ او ګړنۍ برخه کې هغه ستونزه او ناسم پوهاوی نه رامنځته کېده چې اوس کله کله په دې برخه کې پېښېږي ، خو له دې سره سره پښتو ژبپوهانو او لیکپوهانو هڅه کړې چې د ټکو او ځینو نښو په زیاتون سره ددې اوازونو د افادې په بڼه کې اسانتیا راولي او د پښتو لیک لوستنه اسانه کړي.

د یادونې وړ ده چې د پښتو ( ۸ ) واولونو له جملې څخه دوه یې همدا یاګانې دي چې د کارونې خورا زیات ځایونه او اړخونه لري. له واول پرته طبعاً کلمه هډو جوړېدی نه شي نو ځکه که موږ دا دوه واولونه (ي = i ) او (ې = e ) محاسبه کړو نو د پښتو کلمو په سلو کې تر پنځه ویشت زیاته برخه جوړوي ، ددې واولونو ارزښت په دې کې دی چې نه یوازې د نوم یا فعل په اصلي بڼه کې راځي ، بلکې په مغیره حالت کې هم راځي او د پښتو ژبې د ګرامر یوه ځانګړتیا یا د ژبني سکښت یو خصوصیت دادی چې فعل ، نوم ، صفت یا قید پر خپل اصلي حالت سربېره دویم یا مغیره حالت هم لري او د جمع هم ، نو دا دوه واولونه یا (ی ګانې ) د کلمو په دغسې اوښتون کې اساسي نقش لري. سربېره پر دې زورکۍ واله یا همزه واله (ۍ = ئ ) او نرمه یا نرینه (ی ) هم د پښتو کلمو په جوړونه کې ډېر نقش لري نو دا ټول چې سره یوځای شي دا د پښتو کلمو یوه ډېره درنه او غوښنه برخه جوړوي. که چېرې د هغو د ټاکل شویو شکلونو په واسطه د هغو د اوازونو سمه افاده او لیکنۍ بڼه ترسره نه شي او یا یوه د بلې پرځای وکارول شي نو یقیني خبره ده چې د پښتو متن په افاده او لوستنه کې به ډېرې ستونزې رامنځته شي.

زه دلته غواړم لومړی د پښتو د مروجو پنځه واړو یاګانو د سمې کارونې ځایونه په ګوته کړم او بیا وروسته د (ی ګانو ) په اړه خپل یو نظر او وړاندیز راوړم.

۱- نرمه ، لنډه یا نرینه (ی = ay ):

دې (ی ) ته نرمه ، لنډه یا نرینه (ی ) وایي او د ژبپوهنې له معمول تعریف سره سم یو غبرګغږ یا دیفتونګ ګڼل

کېږي چې له يو خپلواک اواز (a) او يو نيمه خپلواک غږ(y) څخه رغېدلی دی. سره له دې چې يو شمېر اوسني ژبپوهان د ديفتونګ له معمول تعريف سره موافق نه دي او هر يو ، يو بېل اواز ګڼي، په هر ترتيب نرمه يا نرينه (ی) له همدغو دوو اوازونو څخه رغېدلې ده او ديوې ځپې په شان يو ځل له خولې څخه راوځي. ددې (ی) دکارونې ځايونه په دې ډول دي:

الف– دمفردو مذکرو نومونو په پای کې راځي لکه:

سړی، منګی، لړګی، زمری، ډانګی، فرنګی او داسې نور...

کېدی شي دا نومونه حقيقي مذکر وي يا لفظي.

ب– په ځينو نسبتي صفتونو يا ستاينومونو کې هم راځي لکه:

توريالی، ننګيالی، زمريالی، بريالی او نور...

ج– په هغو فعلونو کې هم راځي چې دمفرد مذکر نوم لپاره ګردان شوي يا اوښتي وي.

لکه: احمد ډېر ځورېدلی دی، محمود ډېر کړېدلی دی، لاس مې سوزېدلی دی.

د – د ځينو امکاني فعلونو په پای کې هم راځي. لکه:

زړه مې په ښو خبرو رغېدلای شي، استاد د زده کوونکو په ښو اخلاقو خوشالېدلای شي.

وطن په کارونو ابادېدلای شي، ځمکه د بزګر په هڅو زرغونېدلای شي.

۲- ځرګنده يا معروفه (ي = i):

دا (ي) په پښتو کې يو خپلواک غږ(واول) دی چې په پښتو متن کې ډېره زياته کارول کېږي د کارونې ځينې مهم ځايونه يې په دې ډول دي:

الف– دهغو مفردو مذکرو يا نارينه نومونو دجمعې لپاره راځي چې په نرينه (ی) پای ته رسېدلي وي لکه:

مفرد جمع

سړی سړي

زمری زمري

غویی غویي

منګی منګي

لرګی لرګي

او داسې نور...

ب – دهغو مفردو مذکرو نومونو دمغیره یا دویم حالت لپاره راځي چې په نرینه (ی) پای ته رسېدلي وي لکه:

( اصلي حالت ) (مغیره یا دویم حالت )

(سړی ) کار کوي (سړي ) کار وکړ

(بریالی ) درس لولي (بریالي ) درس ولوست

(زمری ) د ځنګله پاچا دی له (زمري ) څخه نور حیوانات وېرېږي.

ج – د نسبتي صفتونو یا نسبتي نومونو په پای کې هم راځي لکه:

خوشال خوشالي رحیم رحیمي

خوښ خوښي کریم کریمي

سوکال سوکالي ابراهیم ابراهیمي او نور....

هوسا هوسایي او نور...

د – په یو شمېر کسبي نومونو کې چې دیوې پېشې یا کسب ښکارندویي کوي هم کارول کېږي لکه:

ډولچي، سرنجي، توپچي، موچي، دوبي، جارچي او نور...

هـ - په یو شمېر فعلونو په تېره بیا د حال زمانې په فعلونو کې هم استعمالېږي.

لکه: ځي، راځي، خوري، کړي، څښي، وړي، لولي، ناځي، پاځي او نور...

۳- اوږده، مجهوله یا ښځینه (ې = e):

دا (ې) هم یو خپلواک اواز (واول) دی چې په پښتو کلمو په تېره بیا په ښځینه نومونو کې زیاته کارول کېږي. دکارونې ځینې مهم ځایونه به یې دلته په ګوته کړو:

الف – دا ښځینه (ې) دهغو مفردو مونثو نومونو دجمعې لپاره کارول کېږي چې په ګرده (ه) یا زور ( a ) پای ته رسېدلي وي. لکه:

مفرد جمع

ډیوه ډیوې

ښځه ښځې

پاڼه پاڼې

مڼه مڼې

زرکه زرکې او داسې نور...

ب – دهغو مفردو مونثو نومونو دمغیره یا دویم حالت لپاره راځي چې په همدې ګرده (ه) یا زور پایته رسېدلي وي. لکه:

اصلي حالت مغیره حالت

(ډیوه) رڼا کوي د (ډیوې) رڼا تته ده

(ښځهٔ) د ژوند نیمه برخه ده. بې له (ښځې) ژوندون ګران دی.

(پاڼه) ورژېده د توت (پاڼې) رنګ مې خوښېږي.

(پلوشه) درس لولي (پلوشې) درس ولوست

ج – دهغو ښځینه صفتونو دجمعې او مغیره حالت لپاره هم راځي چې په ګرده (ه) یا زور ( a ) پایته رسېدلي وي. لکه: مفرد او اصلي حالت مغیره او د جمعې حالت

(ښه ښځه ) (ښې ښځې )

(ښه ښځه ) ښه خوی لري (د ښې ښځې ) به ښه خوی وي

(سره ډیوه ) (سرې ډیوې )

د – په هغو نسبتي صفتونو او فعلونو کې هم کارول کېږي چې د ښځینه نومونو لپاره کارول شوي او یا ګردان شوي وي.

لکه: له (بدې ورځې ) ژاړم ( د ښې ورځې ) خاوند شه

(نجونې ژړېدلې ) (خوېندې خند ېدلې )

(تورې نڅېدلې ) (وراوې تېرېدلې ) او داسې نور...

هـ - په ښځینه ضمیرونو او مفردو حقیقي مونثو نومونو کې هم کارول کېږي لکه:

دې، هغې، ناوې، ادې، خوابنې او نور...

ددې (ې) یو بله ښه ځانګړنه په دې کې ده چې دکلمو په منځ کې هم خپل هویت ساتلی شي او ان که څوک وغواړي په دقیق ډول یې استعمال کړي، دکلمې په سر کې هم خپل هویت ساتلی شي لکه:

(تېر ) دپخوا تېر شوی او (تیر ) د دستک او لرګي په مانا

(پېر ) دمهال په مانا او (پیر ) دلاربنود یا مرشد په مانا.

**۴**- زورکۍ واله (ۍ = ə )

زورکۍ واله (ۍ = yə ) د ژبپوهنې دهمغو معمولو تعریفونو له مخې یو غبرګغږ دی یانې له دوو اوازونو څخه رغېدلې ده چې یو زورکی ( ə ) دی او بل (y ) دی چې یو یې خپلواک ( ə ) دی او بل یې ( y ) بېواک. په پښتو اوسنۍ الفبا کې د زورکي (ə ) او زور (a ) تفاوت نه لیدل کېږي او دواړه په دې ښه (ه ) لیکي، خو فکر کوم د باره ګلۍ په سیمینار کې د زور او زورکي لپاره (ه او ۀ ) نښې منل شوي دي او دا یو ښه وړاندیز دی. او بل یې (y ) نیمه خپلواک غږ دی، د استعمال ځایونه یې په دې ډول دي:

الف – په پښتو مفردو مونثو نومونو کې راځي، کېدی شي دا نومونه یا حقیقي مونث وي یا نا حقیقي، خو په

لفظي ډول پرې د مونث اطلاق کېږي. لکه:

ځولۍ ، زمرۍ ، نرۍ ، ګلالۍ ، ډوډۍ ، ښوکۍ ، او داسې نور...

ب – د ځينو هغو نسبتي صفتونو د جمعې او مغيره حالت لپاره راځي چې په څرګنده (ي) پايته رسېدلي وي. لکه:

اصلي حالت

خوښي خوښۍ

تربګني تربګنۍ

دوستي دوستۍ

خوشالي خوشالۍ

دا به په يوه مثال کې هم واضح کړو:

(اصلي حالت) (مغيره حالت)

د احمد او محمود ترمنځ دوستي ده. د احمد او محمود د دوستۍ مزه نه شته

**۵**- همزه واله ئ (ə y):

دا هم يو غبرګغږ دی او له زورکۍ والې (ۍ) سره يې په سکښت، جوړښت او تلفظ کې هېڅ تفاوت نه شته يانې دا دوه غږونه په حقيقت کې ديوې ښېې په شان يو ځل له خولې څخه راوځي. پښتو ليکپوهانو د زورکۍ والې (ۍ) او همزه والې (ئ) د بېلتون ننبه او ضرورت همدا ګڼلې چې يوه په نومونو او بله په فعلونو کې راځي. زه به دلته د پښتو ليکپوهانو له خوا د همزه واله (ئ) د اوسني دوديز استعمال ځايونه په ګوته کړم.

الف – همزه واله (ئ) اکثره د امر او نهې فعلونو په پای کې راځي لکه: کېنئ، پاڅئ، وخورئ، مه خورئ، لاړشئ، مه ځئ او نور...

ب – د ځينو سواليه جملو په پای کې هم راځي البته دلته هم فعلي حالت څرګندوي لکه: تاسو ټولګي ته راځئ، تاسو درس لولئ، په علمي غونډو کې برخه اخلئ او داسې نور...

د يادونې وړ ده چې همزه واله (ئ)، زورکۍ واله (ۍ) او نرمه يا نرينه (ی) د کلمو په منځ کې خپل هويت ساتلی

نه شي او ځای یې د څرګندې (ې) شکل نیسي، یوازې د کلمو په پای کې دا (ی) ګانې د شکل له پلوه خپل هویت ساتلی شي.

لکه: نرۍ + وال = نریوال یا کلی + وال = کلیوال

اوس د پښتو (ی) ګانو په اړه خپل نظر او وړاندیز وړاندې کوم:

لومړی د نومونو په اړه: پښتو (ی) ګانې طبعاً د بېلابېلو اوازونو ښکارندویي کوي لکه څنګه چې هر اواز خپل یو بېل او واحد نوم لري نو پکار ده چې د هغه ګرافیم یا شکل هم یو واحد او له اواز سره منطبق یو نوم ولري لکه څنګه چې موږ په خپله نوره ابخې ( الفبا ) کې د هر اواز لپاره د ګرافیم یو مشخص نوم لرو او هېڅ ستونزه په کې نه وینو نو دلته هم باید د نومونو د یو والي له لارې دا ستونزه حل شي. په دې برخه کې زما مشخص وړاندیز دا دی چې:

( ی = ay ) ته دې نرینه (ی) وویل شي ځکه چې دا د هغې د کارونې له ځایونو او مانا سره پوره پوره مطابقت کوي، په هر ځای کې چې دا (ی) کارول کېږي، فعل وي که صفت او یا که نوم وي د هغو ټولو خصلت به نارینه وي یا به لفظاً او یا به هم د مانا له پلوه د نارینه ځانګړتیا ترې څرګنده شي نو د (لنډې) یا (نرمې) (ی) دوه نور نومونه دې ترې حذف شي ځکه چې له مانا سره یې اړخ نه لګوي.

(ې = e ): لکه چې (ی ay ) د نارینه نومونو، صفتونو او فعلونو لپاره راځي د غسې ( ې = e ) د مونثو نومونو، صفتونو او فعلونو لپاره راځي نو په کار ده چې ښځینه (ې) ورته وویل شي چې له مانا سره یې مطابقت پیدا شي. د مجهولې یا اوږدې (ې) اصطلاحګانې ځکه سمې نه برېښي چې د (مجهولې) اصطلاح موږ ته مجهوله نه ده او کېدی شي د عربي ژبې او دري ژبې ویونکو ته دا (ې) مجهوله وي او همغه تعبیر دلته سرایت کړی وي نو کوم شی چې موږ ته مجهول نه وي، ولې د مجهول نوم پرې کېږدو ؟

د یوه واول اوږد او لنډ تلفظ کول په مانا کې کوم تغیر نه راولي نو ځکه دا اصطلاح یا نوم هم له مانا سره اړخ نه لګوي، نو که دې (ې) ته همغه (ښځینه ې) نوم ورکړل شي دا کار به له مانا سره مطابقت پیدا کړي.

د څرګنده یا معروفې ( ي = i ) نومونه دومره بده برېښي، ځکه پښتنو او نا پښتنو ټولو ته څرګنده ده او نور نومونه هم نه لري نو ځکه که همدا نوم غوره شي، څه ستونزه نه شي راولاړولای.

د زورکۍ والې او همزه والې (ۍ، ئ) په باب زما نظر دا دی چې دا دواړه په حقیقت کې یو اواز دی او یا د یوه غږ دوه شکلونه دي. موږ په نورو ځایونو کې د پښتو الفبا په برخه کې په واقعیت کې د اوازونو لپاره شکلونه نه لرو او موږ د اوازونو باقي یا پوروړي یو لکه د زورکي (ə ) لپاره هم تر اوسه پورې د (ه) شکل او د زور ( a ) لپاره هم دا (ه) شکل کاروو سره له دې چې د باړه ګلۍ سیمینار د زورکي لپاره (ۀ) شکل غوره کړ خو تر اوسه لا پوره دود شوی نه دی او هم د (u ) او (ه) دوو اوازونو لپاره یو یو شکل ( و ) لرو خو دلته بیا د یوه اواز ( yə )

لپاره دوه شکله لرو (ی، = ئ) ژبپوهانو او لیکپوهانو دهمزه والې د ضرورت وجه (فعلي افاده) ګڼلې، نو که د **فعل**، نوم او صفت د تثبیت لپاره مورږ د اوازونو شکلونه بدلوو نو بیا خو هغه نورې (ی) ګانې هم په فعلونو، صفتونو او نومونو کې راځي نو هغو ته مو ولې بېلابېل شکلونه غوره نه کړل له:

ی = سړی (نوم) بریالی (ستاینوم) کړېدلی دی (**فعل**)

ي = سړي (نوم) ننګیالي (توصیفي یا ستاینوم) خوري، ځي (**فعل**)

ې = ناوې (نوم) تودې/ سړې (صفت) خندېدلې، ګرځېدلې (**فعل**)

نو دلته ولې دا (ی) ګانې دمحتوا له مخې پر شکلونو ونه وېشل شوې. زورکۍ واله او همزه واله (ی، ئ) په حقیقت کې د یوه اواز ښکارندویي کوي او د یوه اواز د تثبیت لپاره یو ازې یوه ګرافیم یا توري ته اړتیا ده او بس. د یوه غږ لپاره د بېلابېلو تورو شتوالی دا مانا ورکوي چې مورږ د یوې ژبې لپاره په یوه واحد لیکدود کې څو الفباوې ولرو او دا د ژبې زده کړه او د تدریس چارې سختوي. نو زما وړاندیز دادی چې همزه والې (ئ) ته هېڅ اړتیا نه شته او دا پر ژبه یو زیاتي بار دی او ګټه نه لري، باید له پښتو الفبا څخه حذف شي.

د باړه ګلۍ په سیمینار کې چې یوه بله ی (ے) شکل په اختیاري ډول منل شوی هغې ته هم هېڅ اړتیا نه شته او دا پر پښتو ژبه د اردو ژبې د اغېز ښکارندویي کوي او د استعمال ځایونه یې په نورو (ی) ګانو افاده کېدی شي.

پښتو لوستونکو ته مې د یاګانو دزده کړې په برخه کې وړاندیز دادی چې دنومونو د زده کړې پرځای د یاګانو د تلفظ او دهغو د استعمال ځایونو ته زیاته توجه وکړي نو مونه (اصطلاح) کېدی شي د سړي له یاده وځي خو د یاګانو دقیق تلفظ او په حافظه کې دهغو د شکل ساتنه د یاګانو له دقیقې کارونې سره مرسته کولای شي. لوستونکي کولای شي لاندې شعار د یاګانو د استعمال د یوه لنډ فورمول په توګه په پام کې ونیسي او په هره کلمه کې چې ( ی ګانې) کارول شوې وي د همدې فورمول له مخې یې د تلفظ په پام کې نیولو سره وکاروي: دا فورمول دادی:

تل دې وي سوله په ټوله نړۍ کې – سره یو شئ دا مو شعار دی.

پورتني فورمول کې د هرې (ی) شکل او تلفظ په پام کې ونیسئ او په هره کلمه کې چې (ی) کارېدلې وي هغه له دې تلفظ او شکل سره منطبق کړئ نو کېدی شي په سم ډول یې وکاروئ.

# دپښتو لیکدود په اړوند خاصې لارښودنې

1. د ( مې، دې، پرې، ترې ) اوداسې نورې کلمې چې په پای کې سپک زېر لري، تل په کوچنۍ (ی ) ) لیکل کیږي. د ( چه ) توری هم د وینا له مخې ( چې ) لیکل په کار دی.

2. د ټولو پښتو کلمو سپک پېښې په ( واوګی ) لیکل کیږي. لکه: بوخت، لومړی، کوچنی، پوښتنه.
3. د پښتو ( ښ ، ږ ) به په هغو کلمو کې لیکل کیږي، چې هلته په اول کې د ( خ، ش ) او په دوهم کې د (ګ،ژ ) غږونه موجود دی، لکه: ( ښځه، پښتو، غاښ، غوږ، ږیره، ږمنځ او نور ).

4. په ټولو افعالو کې د مصدري (د ) پرځای، راتلونکي ((ږ ) ) د غسې (ږ ) ) لیکل کیږي او په (ګ ) یا ( ژ ) یې لیکل غلط دی. لکه: پاڅیږي، ځلیږي، دریږي، ودریږه او نور.

5. د تلل او وتل مصدرونو حالیه فعلونه په پښتو ( ځ ) لیکل کیږي. لکه: ( ځې، وځې، راځه، پورې وځې، کښې وځې، تیر وځې )

6. د پښتو ټول افعال چې د سرینه ( و ) په زیاتولو جوړیږي، په هغو کې له( ۰ و ) سره د ( الف ) لیکل غلط دی، لکه: وکوت، ولید ، وګوره، وخوره. یادونه: د لرې پښتو نخوا لیکوال ( او کوت ) لیکي، مګر دا کوم ګرامري اساس نه لري.
7. ټولې مطلقې ماضي ګانې د مفرد مذکر غایب د پاره په موقوف صورت، یعني بې له (( د ،ی، و ) ) لیکل کیږي. لکه: وکوت، وغورزید ، وچلید. د ( ولیدې، ولیدو ، ولیدلو ) شکلونه پرېښودل شوي او ناوړه ګڼل شوی دی.
8. په هغو کلمو کې چې د (( ر، ز ، ج ) دري واړه تورو غږونه موجود وی، هلته یوازې (( ژ ) ) لیکل کیږي. لکه: ژمی،ژبه، ژور ، ژړا ، پېژندل. او (( جمی، زمی ، جړا ، زړا ، جبه ، زبه ) ) یا د غسې نور لیکل ښه نه دی.
9. په کومو کلمو کې چې د پښتو د (ځ ) پر ځای، په پارسي کې یا د پښتو په کومه بله لهجه کې (( ج ) ) موجود وي، هلته د پارسي (( ز ) ) لیکل سم نه دی، بلکې په پښتو (( ځ ) ) لیکل په کار دی. لکه: ( ځوان، ځای، ځنګل ، ځار ) چې په پارسي کې د ( جوان، جای، جنګل ) او د پښتو په بله لهجه کې د (( جار ) ) په صورت ویل کیږي.
10. د ( ځنډ ، ځله، ورځ ) او داسې نورې کلمې د پخوانې لیک په اساس په ( ځ ) لیکل کیږي.
11. په کومو کلمو کې چې د (( څ ) ) په ځای د ((چه ) ) لهجه موجوده وي، هلته د (( څ ) ) لیکل په کار دي او په ((س ) ) باندې لیکل غلط دی. لکه: (( څوک ، څانګه ) ) ولې چې بنګښ خلک ، ورته ( چوک ، چانګه ) وایي، نو (سوک او سانګه ) لیکل سم نه دی.

12. د لرې ماضي ضمیرونه په دې وروسته ډول لیکل په کار دی: (وم،وو ، وې، وئ، واست، ؤ ، وه، وې ).
13. د (( شول ) ) د مصدر فعلونه په دې ډول لیکل کیږي: (( وشوم، وشوو ، وشوې، وشوئ، وشو ، وشول، وشوه، وشوې ).
14. د ( زه، زما ، زمونږ، زموږ) ضمیرونه د (( هوز ) ) په ((ز ) ) سره لیکل کیږي. که په پښتو (( ځ ) ) ولیکل شی، نو دا مر له فعل (ځه) سره التباس پیدا کوی.

15. د ( لمبه، خمبه، چمبه، تمبل،سمبل ) کلمې په (( م ) ) لیکل په کار دی او په (ن ) باندې (( لنبه،...... تر اخره ) ) لیکل سم نه دی.

## په پښتو کښې د يې ګانو ډولونه

1- مجهوله يې ( پسته يې ) (ې )

هغه يې ده چې مخکينی ټکی يې خفيف زبر ولري. لکه: پېږ، تېر، شيدې، مستې، ادې
2- ملينه يې (ی )

هغه يې ده چې مخکينی ټکی يې زور ولري. لکه: سړَی، لېونَی، سپَی، ختَګی.
3- معروفه يې ( سخته يې ) (ي )

هغه يې ده چې مخکينی ټکی يې زبر ولري. لکه: غورِي، دوستِي، کالِي
4- ثقيله يې ( ښځينه يې ) (ۍ )

هغه يې ده چې مخکينی ټکی يې زورکی ولري او د ښځينه نومونو په پای کې راځي. لکه: چوګۍ، ډوډۍ، خولۍ

5- کړواله يې ( ئ )

بعضې ژبپوهان ورته د ثقيله يې دوهم ډول وايي. دا يې يوازې د افعالو په اشتقاقي حالت کې راځي او آواز يې د ښځينه يې (ۍ ) په شان دی.

د پښتو د يې ګانو په اړه بعضې معمول قواعد.

پسته يې (ې )–

د پستې يې آواز په لاندې تورو کې ښه تمثيل کېدای شي: ادې، شيدې، مستې.
1- هغه لازمي افعال چې د فعلي ريښې مصدري حالت يې (ېدل ) وي، د هغود مشتقاتو لمړۍ يې تل پسته يې (ې ) وي.

د فعلي ريښې نه مطلب (ېدل ) او د هغو اشتقاقي حالتونه (ېدم، ېدې، ېدئ، ېدو ، ېدې، ېدل، ېده ، او ېږم، ېږې، ېږئ، ېږو ، ېږې، ېږي، ېږه او نور ) دي.

د مثال په توګه: کېږم، غوځارېږم، غورځېږم، رسېږم، او داسې نور.
2- هغه مؤنث نومونه چې مفرد حالت يې په (ه ) ختمېږي تل په (ې ) جمع کېږي.
مثالونه: پيالې، کتابچې، غوښتنې، ښځې، مينځې، او داسې نور.
3- ضعيف ضميرونه چې ربښتين صاحب ور ته د جلا ضميرونو دوهم ډول ويلی دی (مې، دې، يې )

په پسته يې (ې) ختمېږي.

مثالونه: کتاب مې راکړه. ټوپ مې و واهه. ختم يې وکړ. پیاله دې راوړه.
4- د هغو مذکرو نومونو جمع چې په (ان يا ګان) کېږي د هغو ښځينه حالت په (انې يا ګانې) ختمېږي.
مثالونه: معلمانې، ډاکټرانې، بيزوګانې، ترورګانې او داسې نور.
5- اکثر ادات هم په پسته يې (ې) ختمېږي.

د مثال په توګه: داسې، پورې، لاندې، باندې، ترې، چېرې، ځنې، چې، او داسې نور.
6- ډېر هغه صفتونه چې ښځينه نوم تعريفوي په پستې يې (ې) جمع کېږي. لکه خرابې خبرې، پستې غوښې، ترخې مندکې. البته ډېر استثنأت هم موجود دي لکه نه بدلېدونکي صفتونه (اساسي، مخفي، او نور). بعضې صفتونه چې مذکر حالت يې په (ی) ختمېږي، ښځينه حالت يې کېدای شي په پسته يې (ې) او يا ښځينه يې (ۍ) جوړ شي. د مثال په توګه: تږی سړی، نری سړک او تږې ښځه يا نرۍ لاره. دلته معمولاً که خج په لمړي سېلاب وي نو جمع يې په (ې) جوړېږي، او که خج په دوهم سېلاب وي نو بيا جمع يې په (ۍ) جوړېږي.

7- هغه مونث نومونه چې په کانسوننټ ختمېږي په (ې) جمع کېږي. لکه: ورځ ــ ورځې، لمن ــ لمنې، وربځ ــ وربځې، او ډېر نور

8- بعضې ښځينه نومونه په (وې) جمع کېږي. کلاوې، ګناوې، بلاوې.
9- ښځينه خاص نومونه چې په (ۍ، ا ، و ) نه ختمېږي هم د جمع او هم په اشتقاقي حالت کې (ې) په اخر کې اخلي. لکه: پروينې ډوډۍ وخوړله. خديجې ته مې اوبه ورکړې.

ملينه يې (ی)ــ

د دغې يې آواز په لاندې تورو کې اورېدلای شئ: سړی، منګی، لرګی، کوچنی، اوکرزی.
1- ملينه يې که د نوم په اخر کې راشي نو هغه نوم يوازې مذکر نوم کېدای شي ( غير له مقصورې يې نه چې له عربي نه راغلې ده او مؤنث نوم هم جوړولی شي. لکه فتوی، معنی او نور ) او که د صفت په اخر کې راشي نو هغه صفت به حتماً مذکر نوم توصيفوي. مثالونه: تږی سړی راغئ. نری د بوال ونړېدئ. بايد وويل شي چې ملينه يې د جملې د حالت په اساس تغير کوي او په معروفه يې تبديلېږي. لکه: تږي سړي ته مې اوبه ورکړې. کرزي رائيې وګټلې.

2- هغه فعلي صفتونه ( پارټيځپل ) چې مفرد مذکر نوم توصيفوي په ملينه يې ختمېږي. مثالونه يې دا دي: تللی مسافر بېرته راغلئ. دا وران شوی هېواد زما هېواد دی. ما زنګ وهلی دی.
3- که چېرته نوم په الف او يې ختم کېږي بايد ملينه يې استعمال شي. لکه: ځای، پای، بډای، سرای، چای، او نانوای.

ښځينه يې (ۍ) –

په نومونو کې، دغه يې د بعضو مفردو مونثو نومونو په پای کې راځي. ډولۍ، بوډۍ، هګۍ او نور.
اکثراً همدا مفرد مونث نومونه د جمعې په شکل هم استعمالېږي. لکه: ډېرې هګۍ مې وخوړې.
هغه ښځينه مفرد نومونه چې په سخته يې (ي) ختمېږي لکه دوستي، ياري، دښمني او داسې نور، د هغو د جمع حالت او همدارنګه اشتقاقي حالت په ښځينه يې ختمېږي. لکه: ډېرې دوستۍ مې وکړې، ستا د يارۍ نه مې توبه، د دوستۍ اصول او داسې نور.

څنګه چې پورته وويل شول بعضې صفتونه چې مذکر حالت يې په (ی) ختمېږي، ښځينه حالت يې کېدای شي په پسته يې (ې) او يا ښځينه يې (ۍ) ختم شي. که چېرته خج په وروستي سېلاب وي نو په (ۍ) ختمېږي. او که خج په لمړي سېلاب وي نو بيا په (ې) ختمېږي. مثال: خوارکۍ غوا لېونۍ شوه.

کړواله يې (ئ)

د دې يې آواز د ښځينه يې په شان دی خو کړواله يې، لکه څنګه چې له نامه نه يې څرګنده ده، يوازې د افعالو سره راځي. مثالونه: راځئ چې ځو. خلک په آرامه پرېږدئ. کرزی کابل ته ورسېدئ. ما له کړکۍ نه ټوپ وهئ (واهه) چې معلم را ننووت. تاسو څه کوئ؟ بايد وويل شي چې کړواله يې يوازې د قندهار په لهجه کې د مذکر- مفرد- غايب د پاره استعمالېږي او په نورو لهجو کې فقط د جمع- مخاطب د پاره استعمالېږي 0

څنګه چې زه مسلکي سړی نه يم نو ځکه نه شم ويلای چې د پښتو اکاډېمۍ هدف څه شی وو چې د يوه آواز د پاره يې دوه توري را و ايستل. که ستاسو سره په دې اړه څه معلومات وي نو لطفاً راته و يې ليکئ.
سخته يې (ي)

دغه يې کېدای شي چې هم د ښځينه او هم د مذکرو نومونو په پای کې راشي. لکه: توتي، غوړي، دوستي، آرامي او نور.

سخته يې يوازې د غايب شخص د پاره د فعل د حاظر حالت د ريښو په پای کې راځي. مثالونه: احمد راځي، هوا خرابېږي، خلک ډوډۍ خوري، ښځې کالي مينځي.

سخته يې د اکثرو هغو صفتونو او نومونو په پای کې راځي چې يو د بل نه جوړ شوي وي.
مثالونه:

اسم صفت,اساس اساسي, وطن وطني,کتاب کتابي,اسم صفت,خراپي خراپ,دوستي دوست,پاکي پاک

## پښتو د یوې باختري ژبې په توګه

پښتو د پښتنو ژبه ده. پښتانه د افغانستان تر ټولو او سیدونکو پخوانی ډېری ( بومې اکثریت ) ژبتوکمیزه ( اتنولینګویستیکي ) وګړنی ډله ده. پښتو او پښتانه له تاریخي-جغرافیایي پلوه په شمال ختیزو سیمو ( پامیر، بلخ... ) اړه لري. د پښتنو نیکونه د سکه، ساکه، ساک ( کاس ) او ساکانو په نومونو یادېدل او پښتو هم د ساکې ژبې نمسی زباد شوې ده. نورې او سنی ساکي ژبې، لکه: اوسیتي(ققفاز) او 12- 13 پامیري ژبې یې له نژدې خویندو څخه ګڼل کېږي

ساکان د اوېستاییانو، پارتیانو، مادیانو او پارسیانو تر څنګه پنځم آریاني ټبر ګڼل کېږي چې تر زیږد ( میلاد ) پېړی پېړی له مخه یې له منځني ختیځ او کوکاسه ( ققفازه ) تر شمال لویدیز چین، هند و کشمیره ستړې ستړې امپراتوری را منځته کړې او د سکندر مقدوني په مشری یې د یوناني یر غلګرو په وړاندې د خپل اصلي ټاټوبي ( باکتریا یا بلخ او د آمو شاو خوا سیمو ) د فاع کړې او را وروسته یې د لومړي خپلواک افغاني دولت په توګه یوناني - باختري واکمني ر امنځته کړې ده. تر ننه 196 2 کاله پخوا یوه برخه ساکان له شماله، سویل ته راو کوچېدل او د هلمند ناوې کښتنی سیمه ( زرنج ) یې په خپل نامه "ساکستان " و نوماوه چې راوروسته پر سیستان واوښت. په دویمه زېږدي ( میلادي ) پیړی کې چې د ساکستان امپراتوري ړنګه شوه، په شمال کې ساکي توکمو کوشانیاتو دبلې امپراتوری بنسټ کېښود چې د هیواد پر شمال، لویدیځ او سویل سربیره یې شمال لویریز هند او کشمیر هم په خپله ولکه کې راوستل.

پښتنو ساکانو په غور و هرات او د هلمند و ارغنداب په ورشووکې تر غوړې مرغې ( اراکوزیا یا اوسنی ارغستان ) او کسې غره تر لمنو بېلا بېلې لویې او وړې سیمه واکې ( ملوک الطوایفی ) رامنځته کړې او راوروسته تر سپند و هند او کشمیره خپاره شول. په دې توګه پښتو له هندي آریایي ژبو څخه اغیزمنه شوه او ډېر څه یې ترې په خپله ځولی کې راوا خېستل، په تېره غبرګژبیزوالی ( ټ ، ډ ، ړ ، ڼ )، بې له دې چې یې له آریاني " ایراني " خپلوانو ژبو، په سرکې همتېر و پامیري ژبو او بیا له پارسي، کوردي ، بلوڅي... هغو سره تاریخي جغرافیایي تړاو له پوښتنې او خرخشې سره مخامخ شي. په دې لاندې لښتیلیک (جدول) کې د پښتو تاریخي- جغرافیایي دریځ ښه ترا لیدلای شئ:

## ټکی او لیک نښې

بی له تورو نه ځیني ټکی او نښې شته چه د لیک په لوستلو کښې دخل لری او یو جمله یا کلمه له اشتباه او ا بهام څخه ژغوری یعنی د دغو نښو او ټکو په لیکلو سړی پوهیږي چه په کوم ټکی باید سړې ودریږی او کومه جمله یا کلمه په بلی پوری وتړي. د تعجب ، پوښتنی ، خطاب او نور و کفیاتو څرګندو نه په همد غو نښو او ټکو کیږي چه په لیکلو کښی ډیر اهمیت لری او دلته یې په مختصر ډول ښیو.

1.( ، ) دانښه د هغو کلماتو تر منځ لیکی چه یوه په بلي عطف وې لکه زما په باغ کښي منې ،ناک ، زردالو او ښفتالو شته. همدا رنګ یوه وړه یا نیمګړې جمله له بلی نه په همدغه نښه بیلیږې لکه څه دې راکړه ، بیرته مې درکړه ، دي نښې ته فاصله ( بیلوونې ) وایی.

2( ؛ ) دا نښه له فاصلې نه زیاته وقفه را ولې او د داسی جملو په اخر کښې وی ؛ زه له چا سره بد نه کوم؛ بدی مې نه ده خوښه؛ نیکی می خوښه ده ؛ دا نښه وقفه (درووني ) بولې.

3( . ) دا نښه د یوې کاملې جملې په اخر کښی ږدې او د خبری د تمامښت علامه ده لکه زمونږ هیواد ییر غرونه لری. شپانه په غرو کښې او قصابان په ښارونو کښی دی.

4( : ) دانښه د هغی جملې یا کلمې په اخر کښی وي چه شرح او تفصیل یې ورپسې وی. لکه زړه می غواړی : یو ښه دوست پیدا کړم ، یوه ښه کتابخانه ولرم او د ښه نامه خاوند شم.

5( - ) دا نښه څو ځایه او په دې ډول استعمالیږی. اول د معترضه جملو د ښودلو د پاره لکه هغه ورځ - خدای دې بیانه راولی - په ماباندی څومره و غمېده چه ته رانه خوابدی شوی.

دوهم چیرته چه په کوم داستان یا مقاله کښی د دو وتنو سوال و جواب وی ، نو د هغوی نومونه نه اخستل کیږی او د غه علامه د یوه او بل د نامه کار ور کوی لکه:

احمد و ویل: محموده - چېرته ځې؟ محمود : لغمان ته ځم

څه کوی ؟

د خپل کور ته ځم او هلته مي مور غواړي

دریم: یخ همد غسې ځای کښې لیکل کیږی لکه چه دلته وروسته اول ، دوهم ، دریم ، نه ولیکل شو .

6( ؟ ) دا نښه د سوال او پوښتني علامه ده د هرې جملي په اخر کښی چه دغه نښه وي هغه جمله دا ستاهام معنی لری لکه دی باغ ته ځی ؟ زین الله سبق وا یی ؟ که دغه علامه د دغو جملو په اخر کښي چه دغه نښه نه

وی معلومیږی چه د لیکونکي مقصد اخبار دی او که پوښتنه..........

7 ( ! ) دانښه د خطاب ، تعجب، تحسین او افسوس د پاره ده لکه په دې لاندې جملو کښې.

ښاغلو ! ملګرو ! عزیزانو ! پاڅیږ ! د وطن خدمت وکړئ ! اوه څومره ! ښکلی دی.

افرین ! د خدای رحمت شه ! د پښتنو په مړانه.

دا نښه کله د جملي په أخره کښې وی او زیاتره همدغه ډول استعمالیږی چه په پورته جملو کښې یې وینئ.

8( ) د دغسی د وه لینده ئیزو کړښو تر منځ هغه توضیح یا معترضه جمله لیکی چه ډیر زیات اهمیت نه لری او حذفول یې جملې ته څه زیان نه رسوی لکه... د رحمان با با اشعار ( چه ستا خوښ دی ) د ساده انشأ ډیره ښه نمونه ده. خاص نو مونه ، اعد اد او خارجي کلمات هم په دغو کړښو کښي لیکی لکه زما ملګری ( احمد ) راغی، ستا ورور له ما نه (10 ) کتابه وړی دی.

9.[ ] دانښه هلته په کاریږي چه په یوه معترضه جمله کښې بله معترضه جمله یا کلمه راشي نو دغه د واړه جملې داسې لیکي. که ربنتیا و وایم [خدای ج مې دې غاړه نه نیسې ] دا سړی ډیر بد سړی دي..

10 (( )) کله چه یو عبارت له کوم کتابه رانقلوی یا کومه مقوله را وړی نو په دغو کړښو کښې یې لیکی لکه.........زمونږ لارښونکي ویلی دي (( د وطن مینه د ایمان جز دی ))

11 (.... ) څو ټکي څنګ اینښودل د خبرو د قطع کولو او د ځینو کلمو دنه لیکلو علامه ده لکه......... زما په کتابخانه کښې د دغو علومو کتابونه شته. صرف ،منطق، فقه...... زما ځاي ته څوتنه راغلل چه نومونه یې دادی زلمی،اباسین، سمسور، صبا ، ......

12.(*** ) چیرته چه دیوی مقالي یوه برخه تمامه شي او بله برخه شروع کیږی نو د دواړو بر خو تر منځ دغه نښه یعنی ستوري لیکي چه یوه برخه له بلی نه بیله شي.

## د "ی " د اقسامو پیژندل

په پښتو کې د "ی " لیکل دا شکلونه لري:

الف: معروفه ) ی ) لکه خپلوی، ورورګلوی ، دا "ی " بې له کومه ښنې لیکله کیږي
ب: مجهوله (ې )

ددې توری شکل لومړی چپه (یا ) وه چې اوږده لمن درلوده مګر څنګه چې دا شکل که د کلمې په منځ کې راشي اشکالات پیښوي نو ې یعني معروفه یا ته دوه ټکي سر به سر ور کړه شوه چې په منځ او اخر کې یو شان وي او دا توری اوږد او کشاله وایه کیږی لکه نارې ، غلبلې ، مېلمه مېرمنه یا نور ...
په لیکلو کې د معرفي او مجهولي یا فرق په کار دي که نه وي مانا غلطیږي بیلګه: خاندي (معرفه ی ) خاندې (مجهوله ې ) مانا یې فرق لري ، یو غایب او بل مخاطب فعل دی ، یا لکه مستی او مستې ، مینه او مېنه ...

ج: تانیثي (ۍ ) دا ۍ په اخیر کې یوه کوچنۍ لکۍ لري چې د نورو یاګانو سره یې فرق وشي لکه: چوکۍ ، خولۍ ، ډوډۍ ، نجلۍ او نور ...

د : ثقیله (ئ ) ثقیله (ئ ) هم د تانیثي یا په شان ثقیله ادا کیږي مګر په لیکلو کې یې شکل فرق کوي یعني په اخیر یا پر سر همزه لري بیلګه: راغلئ ، ځئ چې دا اکثرا د جمع مخاطب په اخیر کې راځي.
ماخذ : ادبي فنون د عبدالروف بېنوا لیکنه

## پښتو املا په پښتو کتابونو کښي

د پښتو ژبې زاړه کتابونه تر اوسه ډیر لږ په لاس راغلی دی او په دغه باب کښي یو سم لټون هم نه دی شوي. مونږ د ځینو قلمی أثارو نومونه اوریدلي دی او لیدلی مو نه دی یا مو ئی د نظم او نثرکو مه نمونه چیرته له نظره تیره شوي ده.

په همدغه وجه د پښتو لیک تحول او تطور په پوره ډول نشو ښودلی او یوازی د مو جودوأ ثارو له مخي د پښتو لیک مختلف شکلو نه او صورتونه څه نه څه ښیو.

تر دغه وخته چه د پښتو ادب لومړي نمونه په لاس راغلي ده هغه دامیر کروړ نظم دي چه د 139 ه په شاوخوا کښي ئې ویلي دی.

دا شعر د انشأ په برخه کښي د پښتو د لرغونی ادب څنګه وا لی څه نه څه راښیی مګر د املا په برخه کښي ترینه صحیح او پوره استفاده نشو کولی ځکه چه د خپل وخت په کوم زاړه قلمی کتاب کښي ئی نه مومو چه زوړ رسم خط راښیی بلکه د محمد هوتک په کتاب (پټه خزانه ) کښي ئي ګورو چه د شاه حسین هوتک په امر په 1141 ه کښي لیکل شوي ده او د محمد هوتک پښتو املا ښیی.

کوم کتاب چه د پښتو لیک لو مړی نمونه راښیې ،هغو د سلیمان ما کو د تذ کرته الاولیأ څو پاڼې دي چه د پښتو لیک تاریخچه اوس مونږ له همد غه ځایه شروع کوو.

## د پښتو ځانګړي توري

د پښتو د مخصوصو تورو د ډولونو ځای پېژندل او د هغو مراعات کول دي، اکثر ليکونکي د ځ او څ فرق نه کوي همدارنګه د ږ او ژ فرق ته ملتفت نه دي کله د ( ز ) او ( ځ ) پر ښېلو الي نه قايليږي مګر دا فرقونه خورا ضروري دي که ونه شي معنا غلطيږي مثلا د پښتو د مخصوصو تورو په ليکلو کې دا سې اشتباهات پېښيږي:

ږ:
دا توري دوه تلفظه لري بلکي کله کله پر درو لهجو ويل کيږي ( ږ ) چې يو رقم د ( ژ ) ډبل او از دي چې دا تر غزني پورته خوا لهجه ده، بل ( ګي ) چې د کابل کښته خوا لهجه ده او دريمه لهجه د ( ګ ) او ( ږ ) ترمنځ لهجه ده چې د لوګر شاوخواته ده. نو ليکونکي بايد پخپل ليک کې ددې توري ځای وپيژني او هغه د پارسي په ګ ونه ليکي که نه وي مانا يې تغير مومي بيلګه: لږيدل د کم شدن په مانا او لګيدل د چسپيدن يا د ګرفتن په مانا راځي بايد سره بيل وي، په تلفظ کې څه فرق نه کوي په هره چې وي مګر په ليکلو بايد يو شکل وي.
همدارنګه ځينې زلمي ليکوال د ږ او ژ فرق نه کوي د ږيري پر ځای ژيره ليکي د کوږ په ځای کوژ ليکي چې دا هم يوه لويه غلطي ده.

ښ:
دا توري هم تقريبا دري تلفظه لري چې يو ښ بل خ او يل ددې دوو ترمنځ يوه لهجه ده.
په دې توري کې هم اکثر ليکونکي اشتباه کوي څوک د ادم پر ځای چې عربي کليمه ده ښادام ليکي او څوک بيا ښندل په عوض د نثارکردن په مانا دی خندل چې د خنديدن په مانا دي ليکي. بيلګه: خندل او ښندل ښور او خور ، پوښ او پوخ پښه او پخه او داسي نور.
څوک لا دا توري په شين ليکي او تلفظ کوي مګر دا هم علط دي بيلګه: خندل، ښندل ، شندل درې سره جلا جلا ماناوي لري.

همدارنګه: ښور ، خور، شور ، ښېل ښېل دي. نو څکه پر ليکونکي ددې توري د ځای پيژندل او پر خيل ځای استعالول لازم دي.

ځ:
چې تر ( ز ) لږ شانته دروند ويل کيږي ددې توري بايد له ( ز ) څخه فرق وشي بعضي ليکونکي يې نه کوي.
بيلګه: زما او ځما دواړه په ځ ليکي او دا يې خيال دي چې هر ځای (ز) وي هغه ( ځ ) ليکل کيږي ، مګر دا عقيده غلطه ده ، (ز) خپل ځای لري او (ځ) خپل ځای. بيلګه زه د من په مانا دي ځه امر دي يعني برو يا ځر او زور يا خوړ او زوړ يا نور.....

څ:

دا توري هم اکثر خلک له (س )سره ګډوي او عقیده لري چې (س) او (ث) فرق نه لري نه لري ،مګر دا اشتباه کوي هم په تلفظ او په استعمال کې فرق لري بیلګه: ثوک او سوک په یوه مانا نه دي همدارنګه ثا او سا ، ثر او سر او اوثار او اوسار یوه معنا نه لري ډ :

دا توري هم چې د انګلیسي D اواز لري اکثر لیکونکي د دال سره مشتبه کوي او ځیني چې پر هر ځای دال ووینې( ډ ) یې لیکي بیلګه: په ډیرو ځایو یا ورځپاڼو کې وینم چې ځرګند ځرګنډ لیکي او دا غلط دی. په پښتو کې( د ) هم شته او( ډ ) هم ، او خپل خپل ځایونو لري بیلګه: رډ او رد ، ډم او دم ، ډډ او دد ، ډډه او دده ډیر فرق لري.

ړ:
ددې توري ځای هم باید د( ر ) څخه جلا وپیژندل شي هم په تلفظ او هم په مانا کې فرق لري بیلګه: موړ او مور چاړه او چاره پړ او پر ، خوړ او خور یا نور داسي....

ټ:
دا توري هم د انګلیسي T اواز لري له(ت) څخه هم معنآ او لفظآ جلا دي او دواړه په پښتو کې شته بیلګه: پټ او پت ، او پت ، سټ او ست ، کت او کټ ، ټول او تول یا نور داسي....

ڼ:
د پښتو دا نون هم د مشترک او عمومي نون څخه فرق لري او په غنه ویل کیږي او داسي آواز لري لکه( ړ ) او( ن ) چې سره یوځي ادا شي ددې توري یو خصوصیت دا دې چې هیڅکله د کلمې په سر کې نه راځي ، او د نون سره هم معنآ او لفظآ فرق لري بیلګه:

باڼه او بانه ، کاڼه او کانه ، چڼه او چنه او نور.....

## د پښتنو په اړه نوې څرګندونې

د پښتنو په اړه ګڼ شمېر څېړونکو او لرغونپوهانو (په تېره په وروستيو درې پېړيو کې) اوږدې څرګندونې او څېړنې تر سره کړې دي. يو شمېر کورنيو دښمنانو او بهرنيو يرغلګرو که له يوې خوا يې پښتانه د وسله وال تيري له کبله وژلي او بې کوره کړي دي خو له بلې خوا يې د غچ او کسات اخستلو له بابته دغه ستر او مېړني اولس ته فرهنګي زيانونه هم رسولي دي. ددې ولس لويه فرهنګي شتمنۍ يې يا لوټ کړې او يا خو يې له مينځه وړې ده. له دې سربېره بهرنيو (په سر کې انګليس او ايران د بېلګې په توګه يادوو ) خپلو ليکوالو ته دنده سپارلې وه چې د دغه تبر او توکم په هکله شکونه او غولونکي اندونه د خپلو څرګندونو له مخې ډاګيزه کړي. نو ځکه خو دښمنانو په دښمنۍ او دوستانو په ناپوهۍ داسې بې بنسټه خبرې چې ګڼې پښتانه څوک دي او له کومه ځايه راغلي دي؟ چاغې کړي دي. له نيکه مرغه چې وروستيو څېړونکو دا خبره سپينه کړه چې پښتانه په خټه اريايان دي خو دا خبره يې هم ډاګيزه کړې چې يو شمېر د سيمې ليکوال او د لويديځو هېوادو څېړونکي رښتيا چې د انګرېزانو لاسپوځي وو او دغو (ګورګانيانو ، صفويانو او قاجاريانو ) لاسپوڅو د خپل ناسپېڅلي چوپړ له بابته د دغو سياسي او فرهنګي دښمنانو د خوښۍ لپاره داسې په ناسمو څرګندونو لاس پورې کړی چې ساری يې په تاريخ کې لږ تر سترګو کيږي. هخامنشيانو ، ساسانيانو ، ترکانو ، چينيانو ، عربانو ، چنګېزيانو ، د هند ګورګانيانو او د ايران صفويانو او قاجارانو او نورو له افغانانو سره له سياسي دښمنۍ سربېره د فرهنګي دښمنۍ له کبله هم له دښمنۍ ډک چلند کړی دی. ولې يوه خبره بايد هېره نه کړو چې يو شمېر څېړونکو او لرغونپوهانو د خپلې سپېڅلې دندې په رڼا کې زيار ايستلی چې د پښتنو او افغانانو د څرنګوالي او څومره والي په اړه بې پرې داسې څه وکاږي چې اوسني او راتلونکي نسلونه له تاريکي نه وژغوري او يوه سمه لاره ورته ور په ګوته کړي.ليکوالو او څېړونکو پخپلو علمي هاندو هڅو کې دا خبره سپينه کړې چې پښتانه اريايان دي او پښتو د هندو اروپايي ژبو څخه هغه ژبه ده چې په هندو اريايي څانګه کې راځي، بيا د دغې څانګې اريايي ډلګۍ کې شامليږي او د اريايي ډلګۍ په شمال ختيځ ښاخ پورې اړه لري ... اوس چې لرغونپوهانو او ژبپوهانو بې بنسټو او غولوونکو اندونو او شکونو ته د پای ټکی ايښی دی، اوسني او راتلونکي کول ته اړينه نه بريښي چې تېرې زړې ببولالې بيا بيا پخپلو ليکنو کې را غبرګې کړي. وړانديز دا دی چې د ساينس او پرمختلې تکنالوژي په رڼا کې ددې اولس پيدايښت او پايښت د تاريخ او ژبپوهنې له مخې په نوي علمي ميتود نوې څېړنې پيل کړي. دا چې د کيس عبدالرشيد افسانوي شته والی په روايتونو کې لږې يا ډېرې ريښې ځغلولي دي دا د اوږده مهال خبره نه ده خو په دې ډول افسانوي خبرو غور غوره بريښي لکه ستر کهزاد چې په ورته څېړنو تياره ګوټونه رڼا کړي دي. په تېره د غرغښت يا ګرشاسب په څېړنه کې چې له يوې خوا يې د خپلو علمي څېړنو نچوړ وړاندې کړی او له بلې خوا يې د ستر شاعر "حکيم اسدي طوسي " شعرونه تفسير کړي او څېړلي دي. نوموړي په دغه کتاب کې د بيټني (بيټ=اتريت) ، سړبن (سروند ) او په تېره د غرغښت (ګرشاسب = غرشاسب... ) په اړه اوږدې خبرې کړي دي او داسې يې په ګوته کړې چې دغه پښتون مېړه د (2400-3000 ) کاله د مخه ژوند کړی دی. "که چېرې د اوستا له مخې د دغه ستر آتل د ژوند نېټه وسپړو ... نو د غرغښت –ګرشاسب ژوند د 2400 او يا 3000 کالو په شاوخوا کې اټکلېدلی شي ... زه ددې اند پلوی يم او تايْدوم يې. " (وګورۍ غرغښت يا ګرشاسب کهزاد لومړی مخ). فرانسوي

لرغونپوه "دارمستټر "ګهرشاسب" د کابل د یوه اتل په نوم پېژني. دارنګه تاریخپوه کهزاد بېټ نیکه یا بیټن له دې سربېره د "اترت" په نوم هم یاد کړی دی او ډاګیزه کړې یې ده چې دا د اوستا په کتاب کې راغلي نومونه دي که چېرې "اترت" د "اترط" په بڼه هم وکارول شي کوم باک نه لري. نوموړي د اترت(بېټني ) په اړه لیکلي دي: "اترت د نورو شهزادګانو په پرتله ډېره واکمنۍ چلولې ده ..." (غرغښت، ګرشاسب کهزاد 8 مخ) همدا راز د هېواد نامتو تاریخپوه غبار په دې اړوند کښلي دي: "... ډېر نامتو اتلان زموږ د هېواد په سیستان کې را پورته شوي چې دغه اتلان د جمشید له پښته دي ... جمشید چې د زابلي کورنګ شاه له لور سره واده وکړ له هغې څخه د "تور" په نوم زوی وزېږېد . له هغه څخه "شید سپ" له نوموړي څخه (تورګ) او له طورګ څخه "شم" له هغه څخه "اثرت" او له نوموړي څخه "ګرشاسب" (غرشاسپ) او له ګرشاسپ څخه "نریمان" له هغه نه "سام" له سام نه "زال" او له زال نه "رستم" وزېږېد . "(تاریخي جغرافیه 277مخ) د سیستان په تاریخ او "احیای الملوک" کې هم ددې خبرې پخلی شوی چې د "اثرت" زوی "ګرشاسپ" د خپل سفر په ترڅ کې د انار او خرما ونه ولیده چې له بابته یې د سیستان بنسټ کېښود . داسې هم ویل کیږي چې ساکان په ( 136-128 مخزیږدي کې ) دغې سیمې (زرنګ =سکستان=سیستان=سجستان ) ته راغلل نو ځکه دغه سیمه په یادو شوو نومونو ونومول شوه. د هېرودت له انده کاږو: "... اروپایي ساکانو ځانونه "سکلت" Scoolotes بلل ... داریوش هم ساکانو "سکه" بللي دي ..."(پښتو او پښتانه ...2مخ) . ولې هغه اریایي ساکان چې مخ په مینځنۍ اسیا را مات شوي دي دا د هغو ساکانو پاتې شوني دي چې د اومې مخزیږدي پېړۍ په ړومبیو کې د قفقاز له غرونو را واوښتل نو ځکه خو "د ساکانو ژبه سره توپیر لري او لویدیز ساکان له ختیزو ساکانو سره د ژباړن په وسیله خبرې اترې کوي "(کله چې ساکان د اوسني افغانستان ځنو سیمو کې ځای په ځای شول او بیا کله چې د واک او تاج څښتن شول نوموړي د هېواد شمال ختیزې او شمال لویدیزې سیمې ونیولې او بیا یې هر لوري ته مخه کړه چې په پای کې ان تر هندوستانه پورې پر مخ لاړ . په ښکاره خو افغانانو (پښتنو ) د غزنوي محمود او نورو غزنوي شاهانو د لښکر یوه ستره برخه جوړوله. مګر په غور مېشتو هغو خپله ازادي ساتلې وه او ښایي داسې شاهان یې درلودلي چې آره یې د لرغوني آریانا یوه ضحاک نومي ټولواک ته رسیده . (الفستن 158-9 مخ ) ډېرو لرغونپوهانو او څېړونکو ضحاک د سهاک مترادف ګڼلی نو ځکه خو "همداسې اساطیري "ضحاک کیدای شي دیو تاریخي واقیعت "سهاک " زبات شي.(زیار 142مخ) لکه څنګه چې د ضحاک په اړه اساطیري انګېرنې ځای ځای د افغانستان په لرغوني تاریخ کې ګورو دا رنګه د غرغښت، بیټن ، سړبن (اترط ، ګرشاسب ، سرند ) افراسیاب، هوشنګ ( Hio Shengah ) ، یما (یم-جم-جمشید ) او د نورو په اړه هم اوږدې څرګندونې شوي دي ګ که چېرې ضحاک د " ساکو " معرب وي نو ساکانو خو د افغانستان په لرغوني تاریخ کې وړ ځای تر لاسه کړی دی او د داسې یوې لویې واکمنۍ بنسټ یې کېښود چې پاتې شونو یې په لسګونو کلونو حکومت وکړ ګ هغه مهال چې هخامنشیانو د شپږمې مخزیږدي پېړۍ په شاوخوا کې په افغانستان تېری وکړ په پرلپسې توګه یې ( 539 ق م – 545 ق م ) یو د بل پسې باختر ، ستاګیدیا (د افغانستان مرکزي سیمې ) ، سیستان، بلوچستان او ګندهارا سیمې لاندې کړې ولې افغانستان شپږ کاله د "کوروش" له پوځ سره جګړه وکړه چې په پای کې د هغې خونړۍ جګړې له بابته چې په کاپیسا کې پېښه شوه پخپله کوروش په 529 ق م کال کې ووژل شو. دا د لیکلي تاریخ یوه پاڼه وه چې ددې جګړې یادونه کوي خو لکه څنګه چې د لرغوني باختر د بنسټ په مهال لیک او لوست نه وو چې د هغه مهال ټولې فرهنګي شتمنۍ یې د کتاب په بڼه

کښلې وای نو څکه خو نا لوستو دغه پېښې د اولسې کیسو په بڼه (پلکور) سینه په سینه او خوله په خوله له یوه کول نه بل کول ته غبرګې کړې دي ... اوس نو څېړونکي د ښته اړ دي چې اساطیرو، اولسي کیسو او یا لرې ترلرېه لرغونو اوستايي او ویدي اثارو ته پاملرنه وکړي او د یوه عالم خبره چې "تاریخ په افسانه کې دي" په دغه بنسټ خپلې لیکنې بشپړې کړي. د ساري په توګه "هیوشنګه " Hio – Shengah سره ډېر ځله په اوستا کې د "پره دات " پیشدادي نسبتي صفت راغلی دی او بیا "پیشدادیان " زموږ په لرغوني تاریخ کې وړ ځای لري. که چېرې "هوشنګ " داریایانو لومړی نیکه ګڼل شوی په "ویدي " سرودونو کې بیا د اریایانو لومړی مور او پلار "یم " او "یمي " ګڼي. بیا زموږ د هېواد په لرغوني تاریخ کې لکه څنګه چې پیشدادیان پېژنو دا رنګه "یم، یما، جم او جمشید " هم پېژنو. د اوستا په لرغونو "ګاتهونو "کې "یما " د "یمه " په بڼه کښل شوی دی. غرشاسپ یا ګرشاسپ هم په اوستايي متونو کې د یوه ستر او زړور اتل په څېر په ګوته شوی دی او زیاته شوې ده چې دغه اتل تر کابله را ورسید (کابل د واکرته په بڼه انځور شوی چې بیا په پهلوي کاپول ژباړل شوی دی) او په یوه ښکلې نجلی مین شو ... "د سیستان د تاریخ په حواله د ښار بنسټ ګرشاسپ ایښی دی. " (لرغوني اریایان خیرمحمد ساد 96مخ) له یوې خوا څېړونکي کاږي چې د سیستان بنسټ "غرشاسب " ایښی او له بلې خوا کورني او بهرني څېړونکي په دې اند دي چې د سیستان نوم د ساکانو د تېر نسبتي نوم (سکه، ساک، سهاک، سیستان، سکیستان، سکیتان، سستان) دی. په تاریخ کې ځنو څېړونکو د ساکانو په اړه دا ثرګندونې هم کړي چې دغه تېر په لومړي سر کې دوه مهمې پلازمېنې جوړې کړې. لومړی چې دغه توکم د پامیر د غرونو څرځایونو ته ورشېوه شو نو بیا یې د یوې وړې واکمنۍ بنسټ کېښود او د "کنګ دژ " (د اوسني کندز نوم هم له دغه نوم نه اخستل شوی دی) سیمه د دوی د واکمنۍ پلازمېنه څکه ګڼل شوې هغه مهال چې ساکان د آمو له سیند نه راپورې وتلي نو ښایي چې دغه ځای یې نیولی وي. له دې سربېره داسې روایتونه هم شته چې ښایي په "کنګ دژ " کې به یوه شاهي ماڼۍ له پخوانه ودانه وه چې د افراسیاب له تېښتې وروسته "کیاني " تېر دغه ځای لاندې کړی وو. د ساکانو دویم ټاټوبی او د واکمنۍ لویه پلازمېنه یې په سیستان کې تېره شوې چې ان تر هندوستانه پورې رسیدلي دي او لرغونپوهان په دې اند دي لکه څنګه چې د مخه ورته اشاره وشوه د یاد شوي نوم اصلي ریښه د دوي له نوم نه را ولاړه شوې ده. که چېرې ضحاک "سهاک " وي او یا "ساک زايي " اسحق زايي وي نو د دې کلمې اصلي بڼه "ساک " دی چې په ډېرو لرغونو متونو کې د "ساکا " په بڼه کښل شوې ده او په هخامنشي ډبرلیکونو کې دغه کلمه د " saka " په بڼه انځور شوې چې په تورات کې "اشکوز =اشکناز " په یوناني متونو کې "Skuthui " یاده شوې ده. په لندن کې خپور شوی او ژباړل شوی د هیرودت "Herodotus " نامتو اثر (کال 1954 –215 مخ ) چې د ځنو قومونو نومونه په کې راغلي دي له ساکانو سربېره "اپارتي "، باکتریا Bactrains ، پکتیکا Pactyica او نورګ همدا ډول "ایران د هخامنشیانو په مهال " کتاب کې هم ډاکتر مرتضی احتشام (158 مخ ) یادې شوې خبرې پخپل ګټور اثر کې را غبرګې کړي دي که چېرې د بېلا بېلو څېړونکو غبرګونونه له پامه تېر کړو وبه ګورو چې ډېرو لرغونپوهانو ساک "سهاک " ګڼلي، اپریتي یې "اوسني اپریدي " ښودلي، بختیان یې "پختون = پښتون= پکتون " په ګوته کړي دي.تازیان اندر حصاري قافله درقافله "بختیان " اندر صحاري کاروان در کاروان "فرخي " کوهها در هم شکسته ابرها بر هم زدند تازیان اندر عنان و بختیان اندر مهار "مسعود سعد سلمان " بختیان چو نوعروسان پای کوبان درسماع اختران شب پلاس وچرخ کوهان دیده اند پختګان "بر "چون

بختیان افتان و خیزان مست شوق ني نشاني ازمی وساقي ومی دان دیده اند "خاقاني " او یادا: بختیان نفس من که جرس دار شوند ازدهان جرس افغان خراسان یا بم "خاقاني " دارنگه "سراولف کېرو " هم په ساساني پېر کې د "درانيو " او "یوسفزو " یادونه کوي له دې سربېره یو شمېر څېړونکي او لرغونپوهان بامیزا یي بامیزیان بولي چې د اوسني بامیانو په شاوخوا کې مېشت او ودان وو گ اکاډمیسن جاوید پخپل کتاب اوستا کې کاږلي چې په "اراکوزیا " Arachosia "کې هغه سیمې راځي چې اوس د غزني، سلیمان غرونو شاوخوا سیمې تر اندوس پورې په غېږ کېنیسي او د دغه نوم اصلي ريښه "الکوزی " دی (اوستا –جاوید 26 مخ) د الکوزي =اراکوزي د کلمې په اړه په اوستا کې هم یادونه شوې او دا کلمه د Harahwati په بڼه کښل شوې، دا رنگه په یوناني لیکدود کې بیا دا کلمه Arachosia په شکل انځور شوې ده گ له یادو شوو څرگندونو نه ډاگیزه کيږي چې پښتانه او یا هر قوم او ټبر یو ناڅاپه د نړۍ پر مخ نه دی پیدا شوی. هرومرو یې یو لوی تاریخي واټن تر شا کړی دی. په تاریخ کې داسې ډېرې بېلگې لرو چې د سړیو نومونه د ځایونو نومونه بیا بیا له یوه نسل نه بل ته را پاتې او تکرار شوي دي

## د پښتنو د لمر ځلښت په تاريخ کې

د پښتنوالي روح، لکه لمر داسې دی، چې هر وخت په بربېښ او ځلښت کې و او دی. د پښتنوالي اخلاق او د پښتنو روحي او عقلي مزاج او د دوی معنوي جذبات او غرايز، د دوی سپېڅلي مشاعر داسې دي، چې هيڅ وخت يې ځان نه دی پټ کړی او پښتون ته يې تاريخي لوړتوب او شهرت هم بخښلی دی، په زړو آريانانو کې تقريباً درې تر څلورو زرو کالو د مخه هم پښتنو شهرت درلود. د هند په زاړه کتاب ريګويد کې د دوی نوم په "پکنه" سره راغلی دی. او په هغو لسو کامونو کې شمېرل سوی دی، چې دوی د آريانانو زوړ تاريخي جنګ کړی و. نينوس او سميلراميس د آشور شاهانو د خپل عظمت په وخت کې هم پر باختر خپلې حملې کولې، اما د دې ځای خلکو سخت جنګونه ورسره وکړه د آشور د ميخي خطو زاړه آثار چې پيدا سوي دي، دا ښيي چې 1100 کاله تر مېلاد د مخه يو آشوري بريالی تګالات فالازار Tagalath Phalazar په دوڅلو ښتو قبيلو کې اراکوتو(ارچوتوس)، هراهوتي او نيسع او نيسا هم ذکر کوي، مګر دغو قبايلو دا فاتح بيو ته مات کی او ځان يې آزاد کی ارکوتو(ارچوتوس) خو د يونانيانو آراکوسيا Arachosia يعني قندهار دی، چې په پهلوي رخوت وه او عربو رخج او رخد کړ هراهوتي harahuate چې په اوستا کې هم راغلی او په ريګويد کې سوس وتي ذکر سوی دی، ارغنداو دی اما نيسع يا نيسا غالباً اوسنی نېش دی، چې د قندهار شمالي مغربي خوا ته کاين دی او د زاړه مدنيت آثار هم پکښې ښکاريږي، او مسعودي اسلامي موْرخ(332هـ) د بست او داور او رخج سره يو ځای د(نېس) په ډول راوړی دی له دې څخه ښکاره سوه، چې پښتانه پخوا هم يو توريالی قوم و او د پرديو مريي توب يې نه مانه.هيروډوټس د يونان زوړ موْرخ چې تر ميلاد د مخه(425-480) کاله اوسېدی، پښتانه د "پاکتويس" Paktves په نامه او د پښتنو اوپرېدي قبيله يې "اپاروتي" راوړې ده.د موْرخينو پلار هيروډوټس وايي: "هغه خلک چې د هند شمال ته د "پاکتي ايکي" په مملکت کې پراته دي، د هستوګې ډول يې د باکتريانو(بلخيانو) دی، دوی خورا توريالي او جنګيالي دي، چې د خشيارشا( 486-465 ق م) هخامنشي فاتح سره وه او پوستينان يې اغوستي وه، لويې_لويې د غشو لښتې او خپلې وطني چړې(پېش قبض) يې درلودې" هلبرانټ Hellebrandtr ليکي: "په ريګويد کې راغلي دي، چې په آراکوسيا(قندهار) کې يوه قبيله ده، چې(واسوديوا يې باچا او د ده زوی سوداس) و، دې قبيلې د سند هـ تر روده پورې بری وموند او جنګې کارنامې يې د افسانو او نقلو په ډول مشهورې وې تر ميلاد د مخه( 329-327 ق م) چې مقدوني سکندر د افغانستان پر خوا هندوستان ته تېرېدی، پښتنو د دې بريالي سره خورا سخته مقابله وکړه، د قندهار خلکو د ده سره جګړې وکړې، د نورو پښتنو په غرو کې هم سخت زحمتونه پر ورغله، د صوات په لته کې د يونان دا فاتح چې ټوله آشيا يې نيولې وه، ټپي هم سو .د سکندر سره د پښتنو مقابله خورا شهرت لري، د پښتونخوا يو غر په يونانيانو کې خورا مشهور دی، چې د يونان زوړ افسانوي پهلوان "هرکول" هم دا غر نه و نيولی، مګر سکندر پر دې غره يرغل وکئ او پښتنو ډېر يونانيان پکښې مړه کړه.

سکندر په پای کې مجبور سو او له ببري پر شا سو، وروسته چې پښتنو دا ځای تخليه کئ، نو سکندر ځني تېر سو، يعنې سکندر په خپل قوت پښتانه نکړه مات.آريان او کنټ کورث د دې غره قوم Arne (آرن) مګر يو بل موْرخ ډيوډوره يې Arnas ليکي چې دا غر په تاريخ کې "عجيب غر" بلل سوی، چې د پښتنو د مېړانې په سبب چا نسوای مسخر کولای او سکندر په خورا زحمت او داسې تلفاتو تر "پښتونخوا" تېر سو، چې ډېر

سپاهیان یې مړه او نور خورا په ستونزو سوي وو.
د ډیورډور مؤرخ په قول، نو څکه سکندر د پښتنو له ببري ببرته هند ته پر دې خوا نه راغی، ناچاره سو چي د بحیرهٔ عرب پر خوا ځان ایران ته ورسوي، او ډېر عسکر یې د لوږي او تندي څخه د بلوچستان په ریګو کي مړه او په 324 ق، م کي یې ځان فهرج ته ورساوه، تقریباً دري کاله یې د پښتنو له لاسه ناورینونه ولیدل.
البرمالي مؤرخ لیکي: چي د پښتونخوا په خاورو کي د یونان سپاهیانو داسي بدي ورځي ولیدې چي دوی به دا خیال کاوه، چي د خپلو زړو پهلوانانو عملیات نوي کوي، دلته په دوی کي هم چمونه وسوه، لکه دوه ویشت پېړۍ وروسته چي په دغه ځای کي پر انګرېزانو راغله
له دغو تاریخي بیاناتو څخه ښه څرګندېږي، چي پښتانه له پخوانو پېړیو څخه دغسي مستقل او آزاد او په ملیت مغرور او توریالي او ګړندي وو او د دوی د پښتنوالي روح په هغه وختو کي هم ځلېدی او شهرت یې درلود، چي ټولو مؤرخینو د دوی ښېګړې ذکر کړي او د آریانانو په زړو کتابو کي یې نوم هم ذکر سوی دی.

د ګریکو بودیک مدنیت صنایع د هر مدنیت او هر ثقافت نمایندګي په ښه ډول کوي، حتی ډېر ځله پوهان په صنایعو څخه د مللو افکار او روحیات هم معلوموي پر صنعت باندي، محیطي عوامل او سیاسي او تاریخي حوادث هم اغېزه کوي یو صنعت چي له یوه محیطه بل ته نقل سي په دې نوي محیط کي نوی رنګ مومي او د دې محیط پر تقاضا ځان سم کي، لکه د مخه چي مو وویل د سکندر د فتوحاتو پر وخت په پښتونخوا کي ډېر یونانیان پاته سوه او چي سکندر ولاړ نو دوی په باختر کي یو سلطنت جوړ کی، دوی خپل یوناني ثقافت او مدنیت ورسره راوړی و، وروسته 600 کاله تر میلاد دمخه د هندوستان د بودا دین هم دې خوا ته راغی، دا دوه مدنیته سره ګډ سوه، د پښتنو روحي تجلیات وو، چي دلته یې یو تاریخي مدنیت چي نه د هند و، نه د یونان ایجاد کړ، دا مدنیت او صنعت چي د پښتونخوا د خلقو قریحې او د دوی محیطي او اجتماعي او روحي عواملو منځ ته راوړی و، د اسلام تر راتلو پوري دلې و، په بامیان، باختر قندوز او د کابل شمالي خواوي، هډه، پېښور، ټکسیلا او د اټک ها خوا ته یې ډېر ښه ـ ښه آثار اوس هم موندل کیږي. د دې صنعت نفوذ او سنیو مؤرخینو لکه: هاکن فرانسوی، فوشه، جون مارشل انګلیس، ګوډار او نورو په ښه ډول پلټلی دی او دا را ښکاره کوي، چي د پښتنو تاریخي عظمت د صنعت او فکر او فلسفې او سیاست له خوا هم خورا ټینګ و. او اغېزې یې په هند کي تر کشمیره پوري تللي وې، لکه د کشمیر د ډورک او ټکسیلا د اولي اونک ستونونه چي دا اغېزې ښه ښکاره کوي

د عربو او اسلام برې مورډ مخه د پښتنو د روحیاتو په بحث کي وویل، چي دوی زاړه مبادي ښه ساتي او چي نوي مبادي یې ومنل بیا یې نو ژر پرېږدي.
د اسلام مقدس دین چي پښتنو ته راغی، نو دوی لومړی د مسلمانانو سره ډېري سختي مقابلي وکړې، مګر وروسته چي دوی دا مقدس دین قبول کړ، نو یې داسي فداکاري ورته وکړې، چي یو لوی مملکت، لکه هند د دوی په توره د اسلام په دین مشرف سو. احمد بن یحی بغدادي اسلامي مؤرخ چي په بلاذري مشهور دی په(255 هـ) کي لیکي: "د هجرت په 30 کال ربیع بن زیاد بن انس حارثي د سیستان له خوا په هرمند او داور راغی او وروسته یې بست او زابل(قندهار) فتحه کړ، مګر د سیستان د رزنج خلکو خپل اسلامي امیر

ایستلی و ، نو حضرت علي(رض ) ببرته د جمل تر جنګ وروسته ونیوی، د حضرت معاویه(رض ) په عصر کي بیا مسلمانانو هغه ځایونه ونیول، چي خلک یې له اسلامه ببرته اوښتي وه، کابل هم په دغو کي و ، وروسته بیا د کابل پاچا رتبیل مسلمانان و ایستل، مګر ببرته مسلمانانو کابل، بست، رخج، داور ونیول، د عبدالملک بن مروان(65-86 هـ) په عصر کي بیا د رتبیل سره جنګونه وسوه او دا خواوي له 30 څخه بیا تر 100 هـ کاله مسلمانانو څو واره فتح کړې "

په دې ډول پښتنو لومړی د مسلمانانو فاتحینو سره کلکي مقابلې وکړې، مګر وروسته چي د اسلام په پاک دین سو ، نو بیا یې دې دین ته ښې فداکاری وکړې، هغه وخت چي د سند اسلامي فاتح محمد بن قاسم د 90 هجري کال په حدودو کي ملتان او سند فتح کول، د دې اسلامي بریالي سره پښتانه هم وه او پر هغه خوا یې اسلام خپور کئ.په (375 هـ) کي د پښتنو لودیانو څخه یوه بریالي شیخ حمید په ملتان کي د سلطنت اساس کېښود ، دې پښتون او د ده کورنۍ تر ډېره په پښتنواله خپله پاچهي وچلوله او د هندوستان د راجګانو څخه یې ځان وساتی.وروسته چي امیر ناصر سبکتګین په 367 هـ کي د غزني پاچا سو ، پښتانه د دې پاچا ملګري سوه او دې پاچا هم د زابل(قندهار ) له پښتنو سره خپلوي وکړه، ځیني موْرخین وایي، چي د ده په لښکر کي چي د هندوستان د حملو دفاع یې کوله، دوه زره یا لس زره ، پښتانه وه د ملتان له لودیانو سره هم د سبکتګین د خپلوۍ له امله دوستانه روابط درلوده.

تر دې وروسته د سبکتګین زوی زابلي محمود چي مور یې د کندهار پښتنه وه، د غزني شاهنشاهي لوړه کړه، پښتنو د خپل خوریي سره ډېر کومکونه وکړه ، د هندوستان فتوحات او د بخارا ، ایران بری ټوله د پښتنو په توریالیتوب وه، یمیني د غزنوي عصر موْرخ وایي: چي پښتانه د اجل په څېر یا د وږي زمري په ډول پر غلیم ورتله، پر کوتلو خاتهـ لکه بربښنا پر زنګلو ننواته، لکه هوسۍ پر غرو لوړېده، لکه سېل په غرو کي شېوه کېده "یو پښتون د هندوستان په فتوحاتو کي د پښتنو مېړانه په دې بیتو کي په فخر او حماست بیانوي:تـــر کـــو نامردو داسي ودنګل له نام و ننګه

زه یو پښتون وم چي ولاړ وم د سلطان تر څنګهتوره په لاس په ســــره اور د عرصات وختم

له بت شکن ســـره بـــه دژ د سومنات وختم پښتانه موْرخین د پښتنو جنګي مشرانو او ملکانو نومونه، چي د سلطان محمود په لښکر کي وه، بیانوي، یو جنرال یې خالو خان و ، په دې لنډۍ کي هم له ګومله د دې جنرال د لښکرو راتګ ښوول سوی دی:چي د خالو لښکري راســـــي !

زه به ګومل ته د خپل یار دیدن له ځمه دغه د پښتنو کومک و ، چي د محمود زوی مسعود د ایران په فتوحاتو کي موْفق او وروسته یې وغوښته چي ولاړ سي، بغداد هم فتح کي او د اسلامي خلافت مرکز غزني ته رانقل کي او غزنوي شاهان د ایشیا او اسلام په پاچهۍ ومنل سي

تر غزنوي پاچهانو وروسته د غور پښتانه بریالي سوه، دوی هم د پښتنوالي د روح په برکت ټوله هند فتح کئ، د غوري سلطان شهاب الدین مېړاني د قطب الدین ایبک بریالیتوب او بیا په هند کي د پښتنو پاچهانو کارنامې تاریخ نسي هېرولای، د سوریانو پښتنو شاهي، خو په هند کي د عدالت او عظمت او مدنیت دوره وه، د شېرشاه سوري عمرانات او د ثقافت او تمدن خدمتونه د تاریخ په زړو لیکي تر اوسه هم د هند په مختلفو ریاستونو کي د دغو پښتنو کورنۍ حکمراني لري.

د کورګانیانو په پاچهۍ کي چي لومړی پښتانه د بابر په ملاتړ ودرېدل او هند یې ورسره فتح کئ، وروسته د

ډهلي ګورګانیانو وغوښته چي د دوی خپل فطري حق یعني آزادي ځني سلب کئ، مګر پښتنو خو مریي توب نه مانه، نو په دې دوره کي پښتانه ټوله پر خپله ننګه ولاړ وه، چي تر پایه یې خپله آزادي له لاسه ورنه کړه.د پښتنو ملي پهلوان او نامتو سردار او ادیب خوشحال خان خټک د دې ملي جنګو سردار و او د پښتنو ملي ادیبانو د خټکو کورنۍ او د مومندو توریالیو د پښتنوالي د استقلال غوښتنو روح ښه ښکاره کئ او د ګورګانیانو پر خلاف یې په خپل ملت کي داسي تبلیغات وکړه، چي په پای کي د پښتنو له مریي توبه ناکامه سوه.پخپله په افغانستان کي هم پښتانه د برم او جلال خاندان وه، د هوتکو او مرحوم حاجي میرویس خان مېړانه او د ده د کورنۍ محمود او اشرف فتوحات خو ښکاره دي.

بیا د نادر افشار په مقابل کي د پښتنو ټینګار د پښتنوالي یوه نندا ره وه، د هرات د ابدالیانو جنګونه د دې فاتح سره مشهور دي، یو کال د قندهار ښار محاصره وه، په دې په پافشاري کي د پښتون شاه حسین او سید ال خان ناصر سپه سالار مېړانه زموږ نه هیرېږي.

د هند له خوا چي نادر افشار بېرته راځي، دې فاتح د خپلو غنایمو د ساتني لپاره د خیبر پښتنو ته د لاري ججه ورکړه، نو ځني راتېر سو ، ځکه چي ده ته د پښتنو د توري بریښ ښه ښکاره و.

تر نادر افشار وروسته چي اعلیحضرت لوی احمد شاه بابا د پښتنو باچا سو ، نو دې ښاغلي پښتون د پښتنو د پښتنوالي لیاقت او کشورکشایي ښه وچلوله، احمد شاه بابا د خپل ښاغلي پښتون ملت په ملګرۍ او توره اووه اته واره پر هند یرغلونه وکړه، د هند مسلمانان یې د کفارو له تسلطه وژغورل د مرهټو جنګ د هندوستان له لویو جنګو څخه دی، چي پنځوس شپېته زره پښتانه تقریباً لسو لکو تنو سره وجنګېدل، ټوله یې مات کړه، تر دوو لکو تنو پوري یې مړه کړه او مرهټیانو ملا یې ور ماته کړه اې مارسډن انګلیسی موْرخ وایي: "احمد شاه په آسانۍ سره د ډهلي پاچا سو او لکه محمود غزنوي او محمد غوري ځو واره یې پښتانه په هندوستان راوبهول... "کرانټ ډفه انګلیسی موْرخ لیکي:

"د پاني پت جګړه د هندوستان د مهابهارت تر جګړې وروسته لوجګړه ده، په درو ورځو کي پښتنو لویه فتحه وګټله" یو پښتون شاعر برهان خان چي په دې فتوحاتو کي د احمد شاه بابا سره و ، د دې جنګ سببونه د پښتانه شهنشاه له خولې داسي بیانوي:احـمد شاه بادشــاه په جارو ویلهد غـــزا په نیــت ووزمه له کابلهیا به قتل کړم کفار په هندوستان کیبا به پرې کړمـه کله پرې باندي خپلهپه دې ډول احمد شاه بابا د پښتنوالي په ننګه هندوستان ته ځو واري ولاړ، او د خپلو اسلافو محمد او محمود یاد یې تازه کئ، د پښتنو لویه لمن له دې ښه ښکارېږي، چي احمد شاه بابا که څه هم هند فتح کئ، بخارا یې ونیوله، پر خراسان یې تسلط وموند ، مګګر په دغو سرو هیوادو کي یې د هغه ځای بادشاهان بېرته په شاهۍ کښېنوله او د پښتنوالي لوړ همت او عالیجنابي یې ثابته کړه، تر احمد شاهي دورې وروسته هم د پښتنوالي روح مړ نه و ، ډېر ځله یې شاوخوا بریښ کاوه، وزیر اکبرخان غازي د کابل او جلال آباد جهادونه او د سردار محمد ایوب خان غازي د میوند غزا او بیا د غازي محمد نادر شاه شهید د ټل او جنوبي خوا جهادونه نه هیروي.

تر دې ځایه مو د پښتنوالي د ورځ ځیني رڼاوي او بربښناوي په تاریخي ادارو کي ښکاري کړې، دا خو یوه لنډه تاریخي کتنه وه، که مو مفصل لیکلای، نو د پښتنو د توري او اخلاقي اقتدار پرته، د دوی مدني او عمراني او ادري خدمتونه هم ډېر دي، چي لیکل یې بېل-بېل کتابونه غواړي، په پښتنو کي علما او د فن او

پوهي خاوندان او بريالي شهنشاهان او نامتو دلاوران او پهلوانان تېر سوي دي، لنډه خو يې دا چې د پښتنوالي روح يو ژوندی او نه مړ کېدونکی روح دی، چې نن ورځ پر پښتنو او د دې زمانې پر ځلمو لازمه ده، چې خپل مفاخر او د پلرو او نيکو د پښتنوالي ښېګڼې را ژوندۍ کي او د خپل مليت په روڼ تاريخ وويا ړي، ما دا څو کرښې د پښتنوالي په علمي پلټنه او سپړنه کي اوس وکښلای سوې او خپلو پښتنو ته مي وړاندي کړې، ګوندي د تېرو پښتنو اروا خوښ او د اوسنيو ځلمو لپاره د پښتنوالي درس وګرځي.

## »ديوې ژبخورې« ژبې يرغل او دپښتو او دري ژبو برخليک

د نړۍ يو شمېر ژبپوهان انګليسي يا انګرېزي ژبې ته (ژبخوره ) ژبه وايي. په دې مانا ، چې د نړۍ هرې سيمې او ټولنې ته، چې دا ژبه رسېدلې؛ نو محلي او يا سيمه ييزې ژبې يې بې اغېزې کړې، له کاره يې غورځولې او له دفتري دريځ او ارزښته يې لرې کړې دي

د انګرېزي ژبې سحر او جادو په دې کې ده، چې له کوم ملمسوس فزيکي او نورو فشارونو پرته خپل ارزښت او قيمت په ټولنه کې خوندي کوي او خلک يې مني او هضموي يې.
يو شمېر پيدا ګوژستان يا ښوونپوهان په دې نظر دي، چې بې فشاره، نامستقيمه او نارسمي زده کړه تر رسمي او مستقيمې زده کړې ډېره موثره ده او زده کوونکي يې په اسانۍ سره منلی او هضمولای شي، دغسې سياستپوهان هم په دې نظر دي، چې تر مستقيم استعمار (ښکېلاک ) نامستقيم ښکېلاک په اسانۍ سره ولسونه ښکېلولای شي. د مستقيم ښکېلاک پر وړاندې د غبرګون لپاره عوامل او دلايل ډېر ژر څرګند ېږي او ولسونه د هغوی په مټ عکس العمل يا غبرګون ښيي؛ خو د نامستقيم ښکېلاک د رد او غبرګون لپاره موجه دلايل د ابهام په تيارو کې پټ وي او عام ولس، چې د ښکېلاک پر وړاندې د غبرګون اساسي فزيکي سرچينه ده، په اسانۍ سره دا دلايل درک کولای نه شي؛ نو په دې ډول نامستقيم ښکېلاک ډېر دوام کوي.

د سياسي ښکېلاک تر څنګ کولتوري يا ژبني ښکېلاکونه هم شته، چې ژبني ښکېلاکونه بيا پخپل وار د دين يا مذهب، سياسي زورواکۍ، علم او تمدن او دغه راز د اقتصاد په مټ رامنځته کېږي. په دې مانا ، چې د يوې ژبې د بقا ، ځلا ، پايښت او پرمختګ لپاره دا څو ملاتړه ډېر ضروري دي:
الف_ دين يا مذهب: ژبه بايد مذهبي ارزښت او ملاتړ ولري، يانې د مذهب او دين زده کړه بايد د هماغه ولس په ژبه وي.

ب_ سياسي يا دولتي ملاتړ: ژبه بايد د سياست او دولت ژبه وي، يانې سياسي چارواکي په هماغه ژبه خبرې وکړي او دفتر و ديوان په همغه ژبه وي.

ج_ اقتصادي ملاتړ: ژبه بايد د ګټې ژبه وي، په دې مانا ، چې څوک ددې ژبې ويونکي دي د هغوی اقتصادي ګټې خوندي وساتلای شي او څوک، چې دا ژبه زده کوي د هغو ګټې لا ورزياتې کړي.
د_ علمي ملاتړ: ددې ژبې ويونکي بايد خپلې ټولې علمي تندې خړوبې کړي او څوک چې دا ژبه زده کوي د هغه ذهني او علمي کچه نوره هم اوچته کړي.

البته يو بل ډول اساسي ملاتړ هم شته، چې هغه ولسي ملاتړ دی، چې د واک و ځواک اساسي سرچينه ده، چې دوی کولای شي خپله ژبه خوندي وساتي؛ خو بيا به هم د علمي، اقتصادي، سياسي او دفتري اړتياوو د لرې کولو لپاره اړ کېږي، چې نورې اړتيا خړوبې ژبې هم زده کړي.

دا ډول ژبې چې تر ډېره حده د ولس له ملاتړه برخمنې وي او نور ملاتړونه یې کمزوري یا سست وي یو اځې ددې جوګه دي، چې د ولس په ملاتړ ځان وساتي په همدې علت ځان ساتې (محافظه کارې) ژبې بلل کېږي. پښتو ژبه هم یوه ځانساتې یا محافظه کاره ژبه بلل کېږي، چې تر ډېره حده د ولس په ملاتړ ژوندۍ ده او نور ملاتړونه یې لا تر دې دمه ډېر غښتلي نه دي.

د پښتو ژبې د بقا او مقامت یو بل غټ عنصر دا هم دی، چې پښتو نه یو اځې د یوې ژبې نوم دی؛ بلکې د پښتون ولس یو ټولنیز قانون هم دی، چې ولس ژوندی وي؛ نو مجبور دی، چې د خپل ټولنیز قانون له لارې خپلې ستونزې حل کړي؛ نو ځکه خو د قوم تر پایښته د قانون او واک پایښت تاکل کېږي.
د پښتو ژبې د بقا بل علت دا دی، چې خپله "پښتو " ریښه له (پښت یا پښتون) څخه اخیستل شوې. هغه ژبې، چې د نوم په ریښه او محتوی کې یې د قوم ریښه او محتوی پرته وي د هغوی ژوند د قوم له ژوند انه سره موازي او مساوي دی او هغه ژبې، چې د علمي، کولتوري، سیاسي او اقتصادي ارزښتوونو په نتیجه کې رامنځته شوې او له یوه ځایه بل ته لېږدېدلې، وده او پرمختیا یې کړې د همدغو ارزښتونو په کمزورۍ او له منځه تلو سره له منځه ځي.

څو ژبې به د بېلګې په توګه وړاندې کړو: عربي ژبه تر شا یې عرب ملت ولاړ دی، ترکي ژبه تر شا یې ترک ملت ولاړ دی، روسي ژبه تر شا یې روس ولاړ دی او پښتو ژبه تر شا یې پښتون ولس ولاړ دی.
دلته د ژبې او قوم د نومونو تر منځ پر مانیز تړاو سربېره رواني تړاو ، ارزښت او ماهیت هم پروت دی، دا قومونه هېڅکله هم دا نه شي زغملای، چې دوی دې ژوندي وي او ژبې دې یې ومري.
اوس بېرته د انګرېزي ژبې پر چټک پرمخیون خبرې کوو ، انګلیسي او یا هم انګرېزي ژبه د (جرمانتیک ) ژبو له کورنۍ څخه ده، په ( 17 ) میلادي پېړۍ کې یې د سیاسي، اقتصادي او علمي ملاتړونو له لامله چټک پرمختګ پیل شو او تر ننه پورې دوام لري.

انګلیسي ژبې نه یوازې خپل ژبنی سکښت او جوړښت وساته؛ بلکې له اړتیا سره سم یې د ګڼو کورنیو ژبو فغات او ګرامري تاثیرات هم وزغمل، پر کورنیو ژبو سربېره یې د نورو هغو ژبو ځینې ویېونه هم راخپل کړل، چې اصلاً د انګلیسي ژبې له کورنۍ سره بېخي په بېلو کورنیو پورې یې اړه درلوده.
د انګلیسي ژبپوهانو وخت پر وخت د انګلیسي ژبې په ابېڅې (الفبا ) کې داسې زیاتونې وکړې، چې د نړۍ د زیاترو ژبو د لغتونو د سمې لیکنۍ بڼې او تلفظ جوګه شي او د نورو ژبو ویونکي که انګلیسي ژبه او الفبا کاروي؛ نو خپل لغتونه پرې سم ولیکي او سم یې تلفظ کړي، د بېلګې په توګه د (خ) اواز لپاره د ( Kh ) د ش اواز لپاره د (Sh ) او داسې نورو تورو کارونه.

په اوولسمه، اتلسمه، نولسمه او شلمه پېړۍ کې چې انګرېزانو د نړۍ بېلابېل هېوادونه لاندې کړل؛ نو انګلیسي ژبه هم د نړۍ ګڼو هېوادو ته خوره شوه؛ خو انګلیسي ژبه بیا د انګلیسانو په څېر نه وه، چې له کوم ځایه به پر شا شول؛ نو سیاسي واک به یې هم ورک شو ؛ بلکې انګلیسي ژبه داسې وه، چې چېرې به لاړه هملته به مېشته او کورنه شوه.

د انګلیسي ژبې د کوربندو ، مېشتېدو او پاتېدو غټ علت د هغې علمي قوت، سیاسي او اقتصادي ارزښت، په دې ډول ورو ورو انګلیسي ژبې د نړیوالې ژبې حیثیت غوره کړ. محلي او ورې ژبې یې لاندې کړې، د علمي قوت تر څنګ د انګلیسي ژبې تر شا غټ تخنیکي او تکنالوژیک قوت هم ودرېد ، چې دې ژبې ته یې نور قوت او پراختیا هم ورکړه، له طبي نومونو پرته په نړۍ کې چې هر نوی شی اختراع کېده؛ نو لومړی نوم او که نه دویم نوم خو یې حتماً انګرېزي اېښودل کېده.

انګلیسي ژبې نه یوازې د پراخې نړیوالې ژبې نقش تر لاسه کړ؛ بلکې د دوو مختلفو یا بېلابېلو ژبو او د هغو د ویونکیو تر منځ یې د دویمې ژبې حیثیت هم غوره کړ او د نړۍ زیاتره تحصیل کړي یا ټکي خپله دویمه ژبه انګلیسي وټاکله، د ساري په توګه یو روسي، یو جرمن، یو فرانسوي یا هندي په دویم هېواد کې ضروري د خپلمنځي پوهاوي لپاره له انګلیسي ژبې څخه کار اخلي.

په ځینو هېوادو کې خو یې د اصلي بومي یا قومي ژبې ځای نیولی دی. د ساري په توګه هندوستان او پاکستان. دلته په رسمي دفترو کې تر بلې هرې ژبې انګلیسي ژبه ډېره کارول کېږي او ځینې پوهان د هندوستان او پاکستان د ترقۍ یو غټ لامل همدا انګلیسي ژبه ګڼي او وایي، چې ددې هېواد وګړو مستقیماً د لومړۍ ژبې له لارې علم او تمدن ته لاره پیدا کړه.

د انګلیسي ژبې د پرمختګ چټک بهیر اوس افغانستان ته هم را رسېدلی، له تېرو څلورو کلونو راهیسې چې هره کورنۍ او بهرنۍ موسسه ګوري؛ نو د تقرر لومړی شرط یې پر انګلیسي ژبه او کمپیوټر پوهېدل دي. له دولتي موسسو پرته اوس دا شرط یا اړ مهمو دولتي پوستونو ته هم غځېدلی، دولتي چارواکي استدلال کوي، چې د افغانستان دولت پر بهرنیو مرستو ډېره لګوي؛ نو بایده دي دا سې یو څوک پر مهمو دولتي څوکیو وګومارل شي، چې پر انګلیسي ژبه پوه وي، له بهرنیو سرچینو سره اړیکې ټینګې کړي، مرستې راماتې کړي او د پوهاوي جوګه شي.

په ولس کې هم د انګلیسي ژبې مینه وال او لېوال ډېر زیات دي (څوک په انګلیسي ژبه پیسې ګټي) او (څوک پر انګلیسي ژبه پیسې ګټي) د افغانستان په ښارونو کې تر درملتونو وروسته د انګلیسي ژبې د کورسو شمیر تر بل هر څه زیات دی.

د انګلیسي ژبې دا چټکه وده او پراختیا په نژدې څو کلونو کې (که حالات همدا سې روان وي) د افغانستان د دولت د دفتري چارو زیاتره رګونه ونیسي او خلکو ته به هم تر یوه حده د ګټې او علم ورونه ښېرته شي؛ خو اوس راځو دې ته، چې دا ژبه به د کومې ژبې ځای ونیسي، کومه به کمزورې کړي او له کومې یوې سره به مرستندویه شي؟ دا ډېره مهمه پوښتنه ده، چې دقیق اټکل او ارزونه غواړي.

زما په اند په افغانستان کې به ورې ژبې چې هسې هم د لویو ژبو (پښتو ) او (دري) تر اغېز لاندې دي نور زیان هم وګالي؛ ځکه دوی به د خپلو ځاني ګټو لپاره هم هڅه وکړي، له نړیوالو سره د ارتباط په هیله انګلیسي ژبه زده کړي او د خپلې سیمه ییزې ژبې د ودې لپاره به ډېر هڅه ونه کړي.

دویم هره علمي او سیاسي ژبه چې یو هېواد ته ورځي او د دفتري ژبې ماهیت او ارزښت راخپلوي، تر ټولو لومړی ګوزار یې پر همغې ژبې دی، چې دا وخت پر حکومت او دفتر حاکمه ده. د حکومت او دفتر د خپلولو لپاره به ددې د دوو ژبو تر منځ سیالي روانه وي او میدان به هغه ژبه ګټي، چې تر شا یې لوی سیاسي،

اقتصادي، علمي او تخنيکي قوت پروت وي.

د افغانستان د دولت دفترونه، چې اوس په کوم سرعت انګليسي ژبه را روانه ده، دا په حقيقت کې له دفتر څخه د دري ژبې د حاکميت د ختمېدو زيګنال دی.

دري ژبه په هېڅ وجه له علمي، اقتصادي، سياسي او تخنيکي پلوه او سمهال د انګرېزي ژبې مقابله نه شي کولای؛ نو ځکه به يې په اسانۍ سره ځای انګليسي ژبه ونيسي.
ددې خبرې يادون هم ضروري دی، چې دري ژبه په افغانستان کې د بر قومي ملاتړ نه لري، په دې مانا ، چې دري ژبه د دربار او دفتر ژبه وه او تر يوه حده د مذهب دويمه ژبه. له قومي پلوه يوازې تاجکان او په دويمه درجه کې هزاره ګان ددې ژبې ملاتړې دي. تر اوسه پورې دري ژبه د دربار له لارې د ګټې ژبه هم وه؛ نو ځکه يو شمېر نورو افغانانو هم يا د ضرورت او يا هم د مجبوريت له مخې زده کوله، هغه ژبې چې په هېواد کې د دربار له لارې حاکمې وې، هغه د درباري امتياز د له منځه تلو سره سمې کمزورې کېږي او نورې ژبې يې ځای نيسي. غوره بېلګې يې په روسيه کې د (فرانسوي) ژبې او د هند د مغولو په دربار کې د (دري) يا (فارسي) ژبې د درباري ارزښت ختمېدل وو ، کله چې د ژبپالي دربارونه له منځه لاړل له هغو سيمو څخه ددغو ژبو د نفوذ تېغر هم راټول شو او ځای يې قومي ژبو ونيو.
د انګليسي ژبې د مخ پر زياتېدونکي ګواښ تر څنګ د افغانستان د اساسي قانون د شپاړسمې مادې حکم هم د دري ژبې حاکميت ته غټ ګواښ پېښ کړ.

ددې مادې د حکم له مخې محلي او سيمه ييزې ژبې د پراختيا او پرمختيا حق لري، دلته خو نورې محلي ژبې دومره د بحث وړ نه دي؛ خو ازبکي او ترکمني ژبې چې اوس دواړه د (ترکي ژبې) په نومونو يادېږي. د دري ژبې حاکميت ته ستر ګواښ دی.

د افغانستان د دري ژبې د حاکميت غټه سيمه همدا د هېواد د شمال ولايتونه وو ، البته د دفتر له لارې د هېواد په جنوب لويديز او نورو سيمو کې هم دود ده؛ خو شمال يې يوه امتيازي سيمه ده. اوس هلته ازبکي (ترکي) ژبه چې د ترکيې د لوی تمدن، اقتصادي او سياسي قوت ملاتړ هم لري، په ټوکېدو ده او دا احتمال لرې نه دی، چې د هېواد په شمال کې د دري ژبې ټولواک واکمني له سخت زوال سره مخامخ کړي.
له قومي پلوه د هېواد په شمال کې هېڅ قوم هم بشپړ اکثريت نه لري؛ بلکې ازبک، پښتانه، تاجک او هزاره ګان ټول يو نسبي توازن لري؛ نو کله چې د هېواد په شمال کې ازبکي ژبه وده وکړي پښتانه هم د خپلې ژبې د ودې لپاره کار وکړي دا کار به د دري ژبې د واکمنۍ ډګر راتنګ کړي او نوي سيالان به يې ورځ پر ورځ غښتلي شي.

د حکومت دننه چې ورو ورو انګليسي ژبه پر دفتر حاکمه وي؛ نو د دري ژبې درباري ارزښت به له منځه لاړ شي او هغه په سوونو څه، چې په زرونو مامورينو ته، چې پر دري ژبې د حاکميت له لارې يې د حکومت ډېر خواږه ترخولي کول او د درباري مهارتونو او لفاظۍ له لارې يې زيات شمېر امتيازات راخپلول ددې

میرزایانو او میرزا قلمانو ځای به داسې نوي ځوان کدرونه ونیسي، چې هم پر انګرېزي ژبه او هم پر کمپیوټر حاکم وي او هم یې عصري علوم زده وي.

د انګرېزي ژبې په زده کړه کې پښتانه تر هر چا ځکه زیات دمخه دي، چې د انګرېزي ژبې غږیز یا فونولوژیک جوړښت د پښتو له غږیز جوړښت سره یو شان دی، د جنس او حالت توپیر او پر ساکن توري د کلمې پیل په دواړو ژبو کې شته په داسې حال کې چې د دري ژبې ګرامري سکښت له دې سره توپیر لري؛ نو له ځینو استثنااتو پرته د ژبې د زده کړې د عملي نتیجو او اصولو له مخې هغه ژبې چې مشترکات سره ولري، د هغو ژبو ویونکي دا ژبې ښې زده کولای شي؛ نو په دې ډول ویلای شو په هر انګلیسي ژبي ټولګي کې چې پښتانه او دري ژبي سره ناست وي د تلفظ وینګ او ګرامر له مخې پښتنو ته د انګلیسي ژبې زده کړه اسانه ده. دا خبره هم واقعیت دی د هرې ژبې یا هر قوم کدرونه چې په حکومت یا دربار کې کار کوي، طبعاً خپل قومي او ژبني تمایلات لري او د خپل ځان په ګټه به کار کوي. کله چې بیا په دفتر یا حکومت کې د دویمې یا قومي ژبې راولاړېږي؛ نو طبعاً د پښتو امتیاز او استحقاق زیاتېږي.
د ملګرو ملتو یوه اداره (یونیسکو ) چې د کولتوري میراثونو او فرهنګي شتمنیو د ساتنې او پالنې لپاره کار کوي، په هر هېواد کې یوه ژبه د هغه هېواد د ملي ژبې په توګه په رسمیت پېژني، دا سازمان په ایران کې فارسي ژبه او په افغانستان کې پښتو ژبه د ملي ژبې په توګه په رسمیت پېژني؛ نو د انګلیسي ژبې په راتګ سره به یوه د دربار د ژبې او بله د ملت د ملي ژبې مسئله زیاته راولاړه شي.
دا یو څرګند حقیقت دی، کېدای شي د پښتو ژبې مخالفینو ته دا یو تریخ حقیقت وي؛ خو حقیقت دی. ملي ژبه د ملت د اکثریت ژبې ته ویل کېږي، نه درباري یا دفتري ژبې ته، په ځینو هېوادونو کې ملي ژبې هم درباري او دفتري بڼه لري؛ خو په ځینو کې بیا دفتري ژبې ځانته او ملي بېلې وي.
د افغانستان د اساسي قانون د 16 او 20 مادې د محتویاتو له مخې پښتو هم د دولت رسمي ژبه او هم د ملت ملي ژبه ده؛ خو د یو لړ نامشروعو جریانونو د پرله پسې حاکمیت له لامله پښتو ژبې خپل ټول دفتري استحقاق نه دی تر لاسه کړی؛ خو ملي ژبه ځکه وه، چې د تاریخ په اوږدو کې یې همدې ملت ساتنه او پالنه کړې ده.

اوس دلته بېرته خپل بحث رانغاړم او وایم، چې که د انګرېزي ژبې د پرمختګ سرعت همداسې روان وي؛ نو ددې احتمال شته، چې د دري ژبې درباري ارزښت، قوت او حاکمیت له منځه یوسي او کله چې ددې ژبې درباري قوت ختم شي؛ نو ددې احتمال شته، چې اوسنی شان او شوکت یې هم له زوال سره مخ شي او انګلیسي ژبه، چې په نړۍ کې یې تر دې دمه ډېرې ژبې خوړلې او له درباره شړلې د افغانستان دري ژبه به هم د ژوند له سخت ګواښ سره مخامخ کړي.

د پښتو ژبې پر وړاندې بیا بل ډول اټکل کېدای شي او هغه دا چې پښتو ژبه خو هسې هم په دربار کې درنه برخه نه لري؛ نو که انګلیسي دربار ته را هم شي، له پښتو څخه څه کمېدای نه شي، پښتو به د ملي ژبې او د وخت په تېرېدو سره د انګلیسي تر څنګ د دولت د ژبې په حیث خپل شته والی خوندي وساتي او هلته به لا ښه څرګنده شي، چې پښتو د افغان ولس ملي ژبه ده.

## جلاوطن ځوان پښت ته د مورنۍ ژبې ښوونه د ژبښوونې د بنسټونو په رڼا کې

لومړی -پیلامیزې خبرې

د دې لپاره چې د مورنۍ ژبې ښوونه(تدریس) د ژبپوهنې او بیا کاروني یا تطبیقي ژبپوهنې (applied)(linguistics یوه ډېره کاروړه څانګه ده او زموږ دا څېړنه هم پر همدغه چلند ) ( approach approach ټیکاو لري، نود اړې سکالو تر ځانګړې تخنیکې برخې له مخه راته اړینه برېښې چې په همدې تړاو د یوه ښوونیز پلان ( curriculum ) او اړوندو ښوونتوکیو (درسي موادو ) او لوستتوکیو یا درسي مفرداتو رغوونکیو او بیا ښوونکیو د لا زیاتې خبرتیاپه موخه یو لړ پیلامیزې(مقدماتي) خبرتیاوې، په بله وینا ، پېژندونه (تعریفونه) لنډ لنډ وړاندې کړو(1).

ژبه

ژبه د یو لړ تړوني( اتفاقي) غږیزو او اوریزو پیلامو(نښو ) یو غونډال(سېستم) دی چې هره یوه یې زموږ د یوه ذهني انځور ښکارندویي کوي. دغه انځورونه چې د یوې ټولنې وګړي یې په یوځایي ډول د خپلمنځي پوهاوي اوخبراوي (communication ) لپاره پر ژبه راوړي اوخبرو اترو یا وینا( conversation or speech ) ته رښتیاینه ښېي،د اړوندې ټولنې د غړیو د اندونو، واندونو، ولولو، انګېرنو، نګېرنو، پارېدنو، ځاځونو، پرغزونو ،اندېښنو، ګیلو ګوسو، غوښتنو، پوښتنو، غبرګونونو، موخو، وېلاړونو، خوښیو، کړو وړو او نورو راز راز پړتني او رواني اکرو بکرو... څرګندویي کوي او د چاپېریال او مهال څیزونه، ښکارندې، پېښې،ښه او بد... رااخلي. په بله وینا:

ژبه د پوهاوي راپوهاوي وسیله ده.د ژبې په مټ خپل اندونه،واندونه(خیالونه)، ولولې، هیلې او غوښتنې سیده یا ناسیده، عمودي یا افقي نورو ته لېږدولای شو. خبرې اترې یې سیده او لیکنه یې ناسیده ډول دی.که بیا یې هممهالو ته لېږدوو، افقي او که راتلونکو پښتونو( نسلونو ) ته یې لېږدوو، عمودي بلل کېږي.

مورنۍ ژبه او ارزښت یې

مورنۍ ژبه له اره هماغه ژبه ده چې یو وګړی یې ړومبی ځل په کوشینه کې له مور، تې مور، پلار، خور، نیا، نیکه یا بل هرهغه کالخوای(ولي، سرپرست) څخه زده کوي چې پالنه او پاملرنه یې ور تر غاړې وي. مانا داچې اړینه نه ده، هغه دې یوازې له هماغې خپلې بیالوجیکې مور زده کړي، خو څنګه یې چې له پخوا زمانو راهیسې په زده کړه کې دادکې(اړې) مور ونډه تاکنده راغلې ده، نو په دودیز او ټولیز ډول په دغه نامه(مورنۍ ژبه) همداسې نومولې پاتې ده. هرګوره، ژبپوهان یې نن سبا تر((مورنۍ)) ((لومړنۍ )) ستاینوم ډېر کاروي. دا سې هم نه ده چې ګوندې هرکوشنی به هرو مرو د خپلې اړې مور ژبه زده کوي او کېدای شي اړوند کالخوای یې د کومې بلې ژبې ویونکی اوسي او هماغه یې لومړۍ زده کړې ژبه وګرځي.

په کابل ښار کې داسې کورنۍ هم ښایسته ډېرې لیدل شوي چې کوشنیان یې تر پښتنو میندو د پارسیوانو پلرونو او نورو ورسره کورنیو غړیو او کور بهر ورته چاپېریال تر اغېز لاندې یې پارسي لومړۍ ژبه ګرځي او میندې یې هم د بېته اړوځي چې ورسره پارسي و غږېږي. ان هغه مهال چې په هغه ښار کې پښتو ژبې کورنۍ لږې او خال خال وې، داسې بېلګه نیمه هم مخې ته راتله چې د پښتنو مور و پلار کوشنیان له چاپېریالي اغېز منۍ سره پارسي ژبې را لوی شوي دي. دا چې مور و پلار ورسره زیاتره پښتو غږېدلي او دوی یې پارسي غبرګون کړې، نو را وروسته یې د اړتیا یا ځانګړې لېوالتیاله مخې د دویمې ژبې په توګه په اسانۍ خو له یو لږ ګرامري ښویېدنو او تېروتنو سره څه ناڅه را خپله کړې ده. په هره توګه، که له یوه داسې کمپېښې ((دوه ژبیوالي)) را تېر شو، په ټولیز ډول هره ژبه یا ژبې چې یو کوشنی یې تر کورني چاپېریاله را وروسته زده کوي، دویمه او پردۍ ژبه بلل کېږي (2).

دزده کړې د وسیلې په توګه

ژبپوهان او ښوونپوهان په ګډو څېړنو پلټنو کې دې پایلې ته رسېدلي چې مورنۍ یا لومړنۍ ژبه د پردۍ ژبې په پرتله په سل کې له 25 تر 30 د زده کړې بهیر زیات چټکولای او ګټورولای شي. د ساري په ډول یو پښتون کوشنی (ډوډۍ) تر(نان) څکه ژر لوستلای او لیکلای شي چې له مانا او وینګ سره یې وار له واره بلد دی او ټول پام یې یوازې پر لوست و لیک را ټولېږي، همداسې یې پارسیوان هم پرخپل وار تر(ډوډۍ) د (نان) لوست و لیک ژر او اسان زده کولای شي.

له همدې لامله مورنۍ ژبه لږ تر لږه د لیک و لوست او ورپسې د نورو لومړنیو زده کړو د وسیله (medium) ژبې په توګه، لکه پخپله زده کړه (تعلیم)، د هرچا له بنسټیزو انساني او مدني ږښتو (حقوقو) څخه ګڼل شوې ده.

نړیوال فرهنګي سازمان یونسکو هم له همدې پلوه ټولو دولتونو او حکومتونو ته پرله پسې سپارښتنه او ټینګار کوي چې باید د نوي زده کوونکي کوشني دغه ږښته(حق) له هر راز بلوساک و زبېښاک، تنګ لیدۍ، سخې رخې، توپیرو تربګنۍ، سیالۍ او کمینۍ... خوندي وساتي، که هغه پرهېوادني کډ وي، یا جهاني کډ په بله وینا، د خپل هېواد دننه وي، یا په جلاوطنۍ کې د بل (کوربه) هېواد دننه !

دا چې د افغانستان د ښوونې روزنې چارواکو د همدغه سرټي ښوونیز یا تعلیمي ( 1386ل ) کال له پیل سره د کابل ښار په پښتون مېشتو ښارمېنو (کارتو) او شاوخوا سیموکې یو لږ جلا لومړني پښتو ښوونځي یا د پارسي ژبو ښوونځیو دننه پښتو ټولګي پر کار واچول، د همدغه نړیوال بشري حق پرځایکړه بلل کېږي، هغه هم د کابل ښارد اړوندو کورنیو د کلونو کلونو په پرله پسې غوښتنو او فشارونو سره.

دا د خواشینۍ خبره ده چې یو شمېر تنګ لیدي او لنډ اندي تش پر نامه هېواد وال دغه ملي- انساني هڅه ((پشتو سازي)) انګېري او د انتي پشتني- افغاني انګروزو په لړ کې یې د یوې تازه پلمې او وسلې په توګه را مخته کوي. د چا خبره، خپل ملي ضد ستم بین المللي او انساني ضد ستم ته ور غځوي !

يوژبى او دوه ژبى

يوژبى( monolingual )هغه څوک دى چې هماغه يوه مورنۍ يا لومړنۍ ژبه يې زده وي او کاروي يې. يوژبيوالى لږ تر لږه درې لاملونه لري: يا يې په اړوند کورني يا ټولنيز چاپېريال کې دويمه ژبه نه وي ، يا يې له بل يا نورو ژبنيو چاپېريالونو او ويونکيو سره راشه درشه او اړيکي او ياورته د زده کړې کابو او کېدون. يو ژبي ټولنه بيا هغه ده چې په اړوند ټاټوبي کې يې هماغه يوه ژبه شتون ولري او هماغه يې يوازينۍ ملي او رسمي ژبه او سي.هرګوره، په نړۍ کې د يوژبيو وګړو او ټولنو شمېر تر دوه ژبيو هغو ډېر ليدل کېږي(3).

دوه ژبى bilingual) ) وګړى هغه دى چې له اره يې په دوه ژبي کورني يا هېوادني چاپېر يال کې چې د بېلګې په توګه يې پلار پښتو ژبى وي او مور يې پارسي ژبې، له هماغه زېږون راهيسې هممهال دوې غبرګې ژبې زده کړې وي. دوه ژبې ټولنه بيا هغه ده چې په اړوند ټاټوبي کې يې دوه ژبې وي، لکه په افغانستان کې ديو ګڼ شمېر نورو(لږه کيو ) ژبو پر وړاندې دوې غورې(پښتو او پارسي ) ژبې له لږو ډېر تو پير سره يو برابر رسمي او کاروني ارزښت لري. داهم ازمايل شوې چې د دوه ژبي ذهن، اندو واند(انديشه و خيال ) تر يو ژبي همزولي هغه ښه ترا وده وش مو مي، ځکه دوه ژبني سېستمونه سره پکې همزمان اړخونه بدلوي (4).

دويم ډول يې دا چې يوه کوشني تر مورنۍ(لومړنۍ ) ژبې وروسته دويمه ژبه لږو ډېره له نژدې يا لرې چاپېريا له او يا هم د ښوونځي او ليک لوست له لارې زده کړې اوسي، لکه واخلې دري پارسي چې له پخوا راهيسې په کابل کې له وړکتونه تر پوهنتونه پرنورو ګردو استوګنو د يوازينۍ تعليمي ژبې په توګه تپل شوې ده. له همدې کبله دا راز دوه ژبيوالي ته اجباري، نا طبيعي يا ښوونځيوال دوه ژبيوالى( bilingualism school ) وايي او پر وړاندې يې مخکيني هغه ته طبيعي، رښتينى يا بشپړ دوه ژبيوالى( natural bilingualism ) او هممهال د يو برابر لاسبرې له پلوه غبرګ دوه ژبيوالى

( ambilingualism ). همدراز يې د د ندو اوموخو له پلوه نورډولونه هم درواخله(5).

د ښوونځيوال دوه ژبي کوشني(پښتوژبي او بل هر نا پارسي ژبي ) د هوښيارتيا او ځيرکتيا کچه( IQ ) هم څه ناڅه تر يو ژبي همزولي( پارسيوان ) لوړه ختلاى شي. د دې خبرې ژوندۍ بېلګې د هېواد په بېلابېلو سيمو، په تېره کابل ښار او اړوندو ښوونځيو کې ښايسته ډېرې ليدل شوې او لا ليدل کېږي.

هرګوره، تر نهه کلنۍ پورې دربيمه ژبه پر کوشني باندې پېټې کېږي. لکه څنګه چې د پاکستان په لومړنيو ښوونځيو کې له هماغه لومړي کال څخه د دوه سلنې(فيصدي ) لږه کۍ اجباري سرکاري ژبې (اردو ) ترڅنګه عربي او بيا (ښايي )مورنۍ يا سيمه ييزه ژبه ټولو ماشومانو ته ور زده کېږي او پر څلورم کال ور باندې انګرېزي هم ورسرباري کېږي چې نه له ښوونپوهنيزو (پېداګو لوجيکي ) ارونو او دويونو(اصولو او قواعدو ) سره سمون لري، نه له ژبپو- هنيزو (لېنګويستيکي )، ټولنپوهنيزو (سوسيالوجيکي )، اروا پوهنيزو (سايکولوجيکي ) هغو سره، او له دغو ټولو سره سره له بشري رښتو(حقوقو ) څخه د دغه دولت يو څرګند سر غړاوى بلل کېږي !

په ټولیز ډول په کوشینه کې د اورېدو له لارې د مورنۍ ( لومړنۍ ) زده کړې ژبه تر بلې هرې زده کړې ژبې زیاته پخه او پیاوړې وي او له زړه، ذهن او شعور، په بله وینا ، اندو واند او خوب و خیال، نګېرنو ، انګېرنو او ولولو سره تر ټولو زیات نه شلېدونکی اړاو تړاو لري. د ساري په توګه هغه ناڅاپي یا هیجاني چغې غږونه یې چې د یوې نا ببرې پېښې، درد ، برېښ و څړیکې، ځاځ و پرغز، پارېدنې، خوښۍ، خپګان، هېښتیا... پر مهال بېواکه او ناڅاپه له خولې راوځي، د هماغې مورنۍ ژبې ښکارندویې کوي(لکه د پښتو په تړاو:(وې، وای، واخ، اخ، و مورې، و خدایه.. ! ).

لیکونکی له داسې یوه ار دوه ژبي افغان سره هم ورپېښ شوی چې یو وخت یې په فرانسه کې له ټکرمخامخېدو سره د مورنۍ ژبې(پارسي )پر ځای د پلار پښتو چغه له خولې ختلې وه. لامل یې هم داوو چې له دوه ژبیوالي سره سره یې په کوشینه کې له یوې مور پرته نور ګرد کورني غږې پښتو غږېدل !

د مورنۍ ژبې ساتنه

که د افغانستان غوندې په ګڼ ژبتوکمیز هېواد کې دننه د هرې لویې او وړې مورنۍ (لومړنۍ ) ژبې بایلنه بدلونه، نه یوازې د اړوندو ویونکیو لپاره د لومړنیو زده کړو ، بلکې ورسره د ټرلې فرهنګي ځانګړنې له پلوه چې د ګډ ملي-فرهنګي وکر(هویت ) رغنده ټوک بلل کېږي، ناوړې او ناسکیندې پایلې درلودای شي، په بهراو بیا لویدیځ کې چې نن سبا یې د وروسته پاتې کړشوي او جنګ و جهل ځپلي افغانستان هماغه ډېری زده کړه وال او پوهیال پاړکی پوړ را نغرلی، هم خورا ډېر رواني او پژني زیانونه رامنځته کولای شي.

لومړی پوخمنګی پښت خو که هرڅومره د نوي کوربه هېواد تر ژبني- فرهنګي اغېز لاندې راشي، نه مورنۍ ژبه له لاسه ورکوي او نه ملي او قومي دود و دستور او فرهنګ او ورسره هممهال را کډوال شوی ځوان پښت ښایي یوازې ژبه و ساتي، خو ورپسې تنکی، په بله وینا ، دریېم پښت چې تر راتګ راوروسته د وړکتون او ښوونځي جوګه کېږي یاګرد سره له پوخمنګي یا ځوان پښتنه نوي رازېږي، مورنۍ ژبه ډېره اسانه له لاسه ورکوي. په تېره چې کالخوایان یې بې توپیره وي او یایې پر نقش و ارزښت دومره نه پوهېږي.ان تردې چې هغوی ورسره د په لوی لاس د مورنۍ ژبې پرځای په نوې زده کړې کوربنه ژبه غږېږي. یهودو د دې لپاره چې پر پردۍ خاوره د دین تر څنګه خپل راتپلي دولت ته داوړو یوه بله پزه هم ور جوړه کړې اوسي، په لومړي سرکې مړه مذهبي عبري له خپلو بچیانو او هغوی په وړکتونو کې له رابایانو (ملایانو ) څخه زده کوله !

دا یوازې ځانخبرې(با شعوره ) کورنۍ دي چې مورنۍ ژبه د ملي وکر(هویت ) او فرهنګ یوازېنۍ لېږندویه او ساتندویه وسیله انګېري اوغواړي، لږترلږه یې ترخپل دریېم پښته تانده او خوندي وساتي او تر وسې وسې یې د بشپړې پردي کېدنې مخنیوی وکړي.

د دغې اړینې موخې د برياينې لپاره داسې روښاندو افغانانو لپاره دوې لارې چارې په ګوته کېدای شي:

1- تر هرڅه مخکې باید له خپلو کوشنیانو سره په خپله مورنۍ ژبه خبرې اترې وکاندې او ترڅنګه یې ورته په

کورني چاپېريال کې په خپله ژبه،له ټنګ ټکوره نیولې، تر ننداړمو او فېلمو پورې اوریزې–وینیزې (ایډیو یژوالې) بوختوونکې او سرګرموونکې اسانتیاوې برابرې کړې او په دې ډول یې له ډېرو بېلاربې کوونکو تېلویزیوني فېلمونو او کمپیو ټري ګېمونو هم بې اړې او بې نیازه کاندې.

همدا رازیې تر کور بهر هم کورټ له پامه و نه غورځوي او تر یوې کچې او هغه هم په ناسیده ډول دا کا بو ور برابره کړې چې په چم ګاونډ ، وړکتون یا ښوونځي کې له همژبي هېواد وال یا سیمه وال سره خوري وروري. مینه او دوستي وپالي. اړوندو کورنیو او دوستانو کره یې د روغ رنځور پوښتنې، غم و ښادۍ، کالیزې او مېلمستیا نیمې په پلمه له ځان سره بوځي. په دې توګه یې هم مورنۍ ژبه تاندوتازه پاتېږي او هم یې له ار هېوادني فرهنګ سره اړوندي او تړاو سمبالتیا او پیاوړتیا مومي.

داسې هم نه چې یو مخیزیې د نوي یا دویم هېواد له هرراز همرنګۍ (assimilation) خنډ شي او د هند د نیمې وچې یا عربي هېوادو د مسلمانانو په پېښېدو يې د خت پرتاګه، سرپټوني او مخپټوني اغوستنې کارونې ته اړ باسي. که نه په لوی لاس به خپل کوشنیان د توکمیزوالي یا راسېزم موخه وګرځوي، که څه هم افغانان له دې پلوه تر تورکانو او ایرانیانو را وروسته په ټول لویدیځ کې ښه نوم لري او له خپلو متلو (چېرې چې او سې، په خوی به دهغو سې یا همرنګ جماعت باش) سره سم ژوند و ژواک راخپلوي.

لومړی او دویم پښت دې له دربیم پښته دومره تمه ونه لري چې له هره پلوه او هوبهو به د دوی پر پله پل اخلي او کټ مټ به ورته(مشابه) افغاني اندو واند ، خوی بوی او کړه وړه راخپلوي. ځکه هغه نور، د چاخبره، د ژبې او فرهنګ له پلوه د نوې(کوربنې) ټولنې لرو ډېر برغړی ګرځېدلی اولا کېدای شي، د مور(یا پلار) له خواهم افغان پاتې نه وي. داسې هم نه ده چې ګوندې دغلته دې د افغانستان غوندې دربواړه پښته سره یوځای یا نژدې واوسېږي او ترخپلې سیده ولکې او اغېزلاندې یې وساتلای شي. نو ددې لپاره چې لږ تر لږه ورباندې خپله ژبه خوندي وساتي، په بله وینا ، د دویمې ژبې په توګه یې ورزده کاندې، له نورو څېزونو ورته لږو ډېر تېربدل په کاردي.

2- دویمه لاره چاره پرله غښتې زده کړه ده، هغه داچې په دغه تړاو د کوربه هېواد له مرستو او اسانتیاوو څخه پوره پوره ګټه واخلي او که اړتیا پیدا شي، په خپل نوښت او لګښت اوونیز زده کړوځي یا ښوونځي رامنځته کاندې.

ترکوم ځایه چې لیکوال ته پته لګېدلې، سوېډن له هغو لویدیزو او بیا اروپایي هېوادو څخه یو بېلګه هېواد دی چې د دربیمې یا پرمختیایي نړۍ له هېوادو څخه د راغلیو او مېشت شویو کډوالو په ګټه خپله فرهنګي پالیسي له نړیوالو حقوقي ارونو او دویونو (نورمونو او قوانینو ) سره سمه پر کار اچوي او ښه ترا لارې چارې او اسانتیاوې ور برابروي. پر یوکلنو اوونیزو کورسونو سربېره په وړکتونو کې هم ور ښیي او په لومړنیو او منځنیو زده کړو کې د یوه مضمون په توګه هم پاینه(ادامه) ورکوي. هرګوره، په ناروې او اوتریش کې افغانانو په پرله پسې غوښتنو او ټینګار دغه ربنته راخپله کړې ده.

په برېتانيا او بيا لندن کې مېشتو افغانانو بيا د ورته رښتې د راخپلونې لپاره د ورته هلوځلو پرځای د کاروبار (بېزنس) لار غنيمت ګڼلې او ژبني کورسونه او ښوونځي يې رامنځته کړي دي. داسې چې چلوونکې يې هم له شاګردانو باړه(فيس) اخلي او هم له اړوندو کوربه ځانګو او سازمانو څخه. دغلته، هرګوره بيا هم يوازې هماغه فرهنګپال او روښاندي افغانان خپل کوشنيان راولي او بې توپېره هغه ورسره کومه لېوالتيا نه لري.

په هر ډول د د ربيم پښت او لا ور پسې نورو ته د دويمې ژبې په توګه د مورنۍ ژبې زده کړه دا نړيواله ګټه هم لري چې که يو مهال د کوربه يا دويم هېواد له خوا خپل پلرني هېواد ته د يوه کارپوه په توګه استول کېږي، تر ارو هغو ((لويديځوالو)) ښه ترا کارکولای شي او ډېرې ګټورې پايلې او برياوې يې په برخه کېدای شي. همدا نن سبا مونږ او تاسې په افغانستان کې د داسې غوروېلګو يو څرک هو مره لګولای شو چې ګوندې راتلونکې ته نوره هم پسې پراختيا ومومي.

دويم-تخنيکي يا ځانګيزې خبرې

په لومړۍ برخه کې مو پيلاميزې(مقدماتي) يا څېرمه(ضمني) خبرې و څېړلې. په دې دويمه برخه کې اره، تخنيکي يا ځانګيزه(مسلکي) سکالو(موضوع) تر وييني لاندې نيسو. په دې مانا چې د جلاوطنو افغانانو د دربيم(او څلورم) پښت لپاره د مورنۍ (پښتو يا پارسي) ژبې زده کړه پر کومو ژبښوونيزو يا لېنګو-پېداګوجيکي ارونو(اصولو) او لاروچارو ټيکاو ولري. لکه څنګه چې په لومړۍ برخه کې ورته نغوته وشوه، دغه راز مورنۍ ژبه(په تېره د څلورم پښت په تړاو) په رښتينه لومړنۍ نه، بلکې د کوربنې(لکه سويډني) ژبې تر څنګه دويمه ژبه ګڼل کېږي او په کار ده، له همدې ګوتپېره يې وځيرو او وشنو. ځکه د دربيم او بيا څلورم پښت ړومبنۍ ژبه سويډني ده چې کوروبهر پې غږېږي او له وړکتونه يې تر پوهنتونه ليکنۍ يا ښوونيزه(تعليمي) ژبه بلل کېږي.

ښوونتوکي(درسي مواد)

له دوه ګونو افغاني ژبو څخه د هرې يوې ښوونتوکي (درسي مواد )او لوستتوکي( درسي مفردات)بايد د يوه داسې زده کړيزپلان پر بنسټ برابر او چمتو کړشي چې تر هرڅه له مخه د کوربنو يا مرستندويو له خوا ور ټاکلي وخت او په واک کې له ورکړو تخنيکي اوزارو وسيلو يا نورو اسانتياوو او شونتياوو او بياد کورنيو له ښوونيزو وندوسره سمون و لري. له ((وخت)) څخه موخه دا چې اړوند کورس يا ښوونځی څوکاله يا سېمېستره غځېدای شي او بيا په اوونۍ کې څو ورځې او څو ساعته. تخنيکي اوزار وسيلې هغه دي چې په ښوونيز بهير کې د ښوونکي د ښوونې تر څنګه اوريزې، وينيزې او وييزې اسانتياوې او لارې چارې شوني کوي او داسې نور اړوند ښوونتوکي او لوستوکي يا ربړې او ستونزې.

ټاکلي ښوونتوکي او لوستوکي به د ټاکلو ښوونيزو پېرونو يا کلونو له شمېر سره سم پر څو ټوکو کتابونو ووېشل شي او په دې ډول به د يوې پرله غښتې لړۍ(منسجمې سلسلې) ښه غوره کړي.که د ښوونځي يا

کورس ترڅنګه کورنۍ هم کارنده نقش یا ونډه ولري، تش هماغه ابېڅې(الفبې) کتاب بس ګڼل کېږي چې په دوو سېمېسترو کې به يې ټاکلي لوستتوکي يا مفردات (syllabus) پر کار اچول کېږي. که نه، ښايي خبره درو څلورو ټوکو ته ورسي چې په هماغه شمېر ښوونيز يا تعليمي کلونه هم غځېدنه مومي. په پېښور کې د ځايي او افغاني پښتو ژبيو لپاره شپږ ټوکيز کتابونه چمتو شوي ول چې د څلورکلن پلان له مخې په لومړنيو شپږو ټولګيو کې پرکار اچول کېدل(6).

له ساده والي د ګرانوالي پر لور

له ساده والي څخه د ګرانوالي يا پېچلتيا او ورسره ورسره له ټوک(جزء) نه ټول(کل)خوا ته پرله پسې پرمختګ يا پرمخيون د ښوونپوهنې (پېداګوجۍ) او په ځانګړي ډول د ژبښوونې يا ژبني تدريس يو ټولمنلی ار(اصل) دی. په دې توګه په کارده، اړونده کتابي لړۍ او بيا په هريوه کې دننه لوستوکي له ساده والي څخه را پيل شي او ورو ورو پېچلتيا ومومي.

په ټاکلې کتابي لړۍ کې ډېر غوره او پامور لومړنۍ هغه دی چې د دود له مخې لوست وليک literacy يا هم زموږ په وطني نامه ابېڅې او الفبا کتاب بلل کېږي. د دغه لومړني کتاب لوستونه به څه ناڅه پر پېنځو يا شپږو پړاوونو يا ډلو وېشنه مومي چې نيم به يې په يوه پېر يا سېمېستر کې وړاندې کېږي او نيم به يې په دويم هغه کې.

لومړي څو لوسته به د داسې وييونو پر بنسټ جوړېږي چې هم لنډ او يووستوي وي، هم يې د رغنده غږونو توري سره جلا جلا او هم پژيز (غيرمجرد) له انځورونو سره، لکه: اس، دادا، ور، اور، واوره، وږی، ادې،دوه، درې، اووه، زر، اس،ورږ، اوښ، واښ، وز، وزه، ورور، ډُول، ډوډۍ، اوړه... چې يوازې به د تخنيکي اوزارو په مټ په اوريز، وييز او وينيز(انځوريز) ډول وړاندې کېږي.

د دويم پړاو لوستونه به پر تېرو وييونو سربېره نور داسې وييونه هم رانغاړي چې څه ناڅه اوږده، انځورور، او توري يې سره لړوډېر نښتي (مرکب) وي، لکه: مور، پلار، نيا، نيکه، چرګ، چرګه، هګۍ، هډوکی، سپی، پسه، غوا، غويی، يو، اته، لس، شل،خوسی، څوکۍ، اوبه، سيند، هسک، خور، ناوې، کور، کالي، بابا، لالا، باغ، بڼ، کار، کب، کټ، خت، څادر، پټو، سر، لاس، پښه، موږک، ږمنځ... په دې پړاو کې به ښوونکي د هماغه تخنيکي سېستم په کاراچونه شاګردان د ټته هڅوي چې له اورېدو سره يې سم له سمونې ور غبرګ (تکرار) کاندې، ورسره يې مخامخ بيا بيا تمرين کړي او په پای کې يې د لنډو لنډو پوښتنو ځوابونو ته هم راوبولي.

د درېيم پړاولوستونه بيا داسې اوږدنه و مومي چې ليکنی کړاو(مشق) ور سره تړلی وي. دغه کړاو به د ړومبي پړاو له نانښتو(مفردو) وييونو څخه راپيلېږي او د دويم هغه پر سره نښتو(مرکبو) هغو او ورسره ورسره اسانو او ساده نومځرو(ضميرونو)، ستاينومونو(صفتونو)، کړولونو(قيدونو) به پای ته رسول کېږي. په همدغه پړاو کې دا هم له ياده کښل په کار نه دي چې د ابېڅې ټول توري راونغاړي او په دې ډول به د همدغه پړاو پای

ته د اړوندې ابېځې(الفبا )بشپړ لیکلړ(فهرست ) هم وړاندې کېږي. هرګوره ، د دغه ړومبني کتاب له هماغه پیله د هر مخ نوي نوي توري کېدای شي ، په اړوند لمنلیک(حاشیه ) کې تت او کمرنګ چاپ شي او د شاګردانو سترګې ورسره روږدې شي ، بې له دې چې په سیده توګه ور ښوول شي ( 7). په ځلورم هغه کې به له ویپانګې(لغوي ذخیري ) څخه په کارا خېستنه چې د تېرو درو ډلو یا پړاوو یووستوو ویيونو(کلمو ) تر څنګه به د بېلښتې او تړښتې(اشتقاقي او ترکیبي ) هغو په سرباری، پوره غځېدلې وي ، لنډې لنډې رغول شوې غونډلې(جملې ) پر کار اچول کېږي. په دغه برخه یا پړاو کې به شاګردانو ته کورنی کار هم ورکول کېږي چې تربل لوسته به یې بشپړوي او ښوونکي به یې د همغه لوست په ترځ کې مخامخ ور سموي او ارزوي.

د پېنځم یاورستي پړاو لوستونه به له لنډو او خوندورو نثرونو ، لکه ټوکو ، طنزونو ، نکلونو او ساده وړو وړو نظمونو او ترانو څخه برابرېږي، داسې چې منځپانګه یې تر وسې وسې افغاني رنګ و خوند ولري. د دغه پړاوکورنی کار به زېږندویه(انشايي یا ایجادي ) بڼه ولري چې د شاګردانو وړتیا(استعداد ) ور سره غځونې وکړي. د ساري په ډول به هر هر ځوک ځانته تر بل لوسته له پورتنیو نثري ځېلونو څخه په خپلو ګوتو یوه یوه بېلګه کاږي او په ټولګي کې به یې نورو ته اوروي.

په دې توګه به د هر لوست مهالپېر(سېمېستر یا کال په اوږدو کې د همدغو کورنیو کارونو ارزونې د ازموینو ځایناستې کېږي او دګرد پېر(دورې ) پای ازموینو ته به هم کومه اړتیا نه وي، بلکې د کورنیو یا کالخوایانو په ګډون به د یوې سرګرموونکې مېلې یا جشن په ترځ کې په بېلابېلو پوړیو یا درجو بریلیکونه ور وېشل کېږي.

لیکنی ربړه یا پرابلم

د دریېم پښت لپاره د مورنی ژبې په زده کړه کې دودیز عربي اری لیک ډول یو ستره ستونزه ده نومېرل کېږي. ځکه دوی له څه ناڅه پرمختللې او اداپټو ریفورم شوي لاتین هغه سره روږدي شوي چې د ژبې او لیک ، په بله وینا ، وینګ او لیکنګ( ملفوظ او مکتوب ) ترمنځ توپیر خورا کم دی. کوم نوښت چې په سوېډن کې د مورنی ژبې د پښتو او پارسي د دودیز لیک د وینګ (تلفظ ) اسانی لپاره له سویډني لیک سېستم څخه کار اخېستل کېږي او په لوست توکو او کتابو کې ورسره څنګ تر څنګ چاپېږي ، د ژبښوونې له پلوه د ستاینې وړ دی. هرګوره ، په دغه تړاو به دهغه بشپړ غړیز یا فونیمیک سېستم وړاندیز هم بېځایه نه وي چې اړوندو اروپایي اریانپوهانو (ایرانېستانو ) د نړیوال فونېتیک الفبېت په رڼا کې د افغاني ژبو لپاره ټاکل شوی او د افغانستان د ژبپوهنې اطلس د پروژې له مخې پې 26 افغاني ژبې کښل شوي دي. دغه غړیزه ابېځې یا الفبې کارونه، نه یوازې د دریېم او ځلورم پښت جلاوطن افغاني کوشنیانو لپاره د مورنی ژبې زده کړه اسانوي، بلکې په انګلیستان، فرانسه او نورو اړوندو هېوادو کې د ړومبني او دویم پښت هغو لپاره دانګرېزی او فرانسي ژبو د اسانې، چټکې او ښه ترا زده کړې په برخه کې په ځانګړې توګه ګټوره او لاخورا اړینه پرېوځي، په دې چې د دغو ژبو په لیکدودکې له پېړیو پېړیو راهیسې کوم اغېزمن سمون یا ریفورم نه دی راوستل شوی. چیني، جاپاني یا کوریایې هغه خو ګرد سره په الفبایي سېستم کې نه راځي او له دې کبله د بهرنیانو

لپاره په ښوونيز، سوداګري او نورو برخو کې لاتيني او بيا فونيميک ليک کارونې ته اړوځي.هسې خو په ټوليزه توګه د نوې ژبپوهنې په تيوريکي ليکنو څېړنو کې له فونيميک او بيا فونېټيک سېستم څخه هېڅ رغېدن نشته، که هغه د هندواروپايي ژبو په اړه وي، که د سامي-حامي(عربي، عبري... ) ، التايي(تورکو مغولي ) يا چيني، جاپاني... په تړاو.

اخځليک


1- Conccise Oxford Dictionary. 10th ed. Revised, edited by Judy Pearsall. BCA London Newyork Sydney Toronto 1999.

2- Ulrich, W. : Wörterbuch, Linguistische Grundbegriffe S.21. Verl. F. Hirt, W.Germany1972.

3- دکتور احسان انتظار: زبان مادری در مهاجرت. اريانا(بيرون مرزی ) ،سال چهارم، شمارۀ دوم(تابستان 3181 ) ص19-24.

4- Ulrich, W. : 1972. S.77.

5- انتظار: هماغه خپرونه 28- 31مخ

6- په پېښور کې د پاک- افغان- جرمن د لومړنيو ښوونځيو د ژبلوست کتابونو پروژه چې ليکوال ورسره پر1993کال همکاري درلوده.

7- د افغانستان د ښوونې روزنې وزارت د ژبلوست کتابونو د تيارونې په لړ کې د لومړني ابېڅې(الفبې ) کتاب د بېلګې له مخې چې د ليکوال تر لارښوونې لاندې د شپږمې لمريزې لسيزې په وروستيو کې چاپ ته چمتو شوی وو.

- همدا راز د ليکوال پښتو لوست کتابونه(پښويه، وييپوهنه، ليکلارښود... ) ، ځانګړي ازمېښتونه او يادښتونه

## دپښتو لیکدود په اړوند خاصې لارښودنې

1. د ( مې، دې، پرې، ترې ) اوداسې نورې کلمې چې په پای کې سپک زبر لري، تل په کوچنۍ (ی ) ) لیکل کیږي. د ( چه ) توری هم د وینا له مخې ( چې ) لیکل په کار دي.
2. د ټولو پښتو کلمو سپک پېښن په ( واوګی ) لیکل کیږي. لکه: بوخت، لومړی، کوچنی، پوښتنه.
3. د پښتو ( ښ ، ږ ) به په هغو کلمو کې لیکل کیږي، چې هلته په اول کې د ( خ، ش ) او په دوهم کې د (ګ،ژ ) غږونه موجود دی، لکه: ( ښځه، پښتو ، غاښ، غوږ، ږیره، ږمنځ او نور ).
4. په ټولو افعالو کې د مصدري (د ) پرځای، راتلونکي ((ږ) ) دغسې (ږ) ) لیکل کیږي او په (ګ ) یا ( ژ ) يې لیکل غلط دی. لکه: پاخیږې، ځلیږې، دریږې، ودریږه او نور.
5. د تلل او وتل مصدرونو حالیه فعلونه په پښتو ( ځ ) لیکل کیږي. لکه: ( ځې، وځې، راځه، پورې وځې، کښې وځې، تیر وځې )
6. د پښتو ټول افعال چې د سرینه ( و ) په زیاتولو جوړیږي، په هغو کې له(۰ و ) سره د ( الف ) لیکل غلط دی، لکه: وکوت، ولید ، وګوره، وخوره. یادونه: د لرې پښتو نخوا لیکوال ( او کوت ) لیکي، مګر دا کوم ګرامري اساس نه لري.
7. ټولې مطلقې ماضي ګانې د مفرد مذکر غایب د پاره په موقوف صورت، یعنې بې له (( د ،ی، و ) ) لیکل کیږي. لکه: وکوت، وغورزید ، وچلید. د ( ولیدې، ولیدو ، ولیدلو ) شکلونه پرېښودل شوې او ناوړه ګڼل شوی دی.
8. په هغو کلمو کې چې د (( ر ، ز ، ج ) دري واړه تورو غږونه موجود وی، هلته یوازې (( ژ ) ) لیکل کیږي. لکه: ژمی،ژبه، ژور، ژړا ، پېژندل. او (( جمی، زمی ، جړا ، زړا ، جبه ، زبه ) ) یا دغسې نور لیکل ښه نه دی.
9. په کومو کلمو کې چې د پښتو د (ځ) پر ځای، په پارسي کې یا د پښتو په کومه بله لهجه کې (( ج ) ) موجود وي، هلته د پارسي (( ز ) ) لیکل سم نه دی، بلکې په پښتو (( ځ ) ) لیکل په کار دی. لکه: ( ځوان، ځای، ځنګل ، ځار ) چې په پارسي کې د ( جوان، جای، جنګل ) او د پښتو په بله لهجه کې د (( جار ) ) په صورت ویل کیږي.
10. د ( ځنډ ، ځله، ورځ ) او داسې نورې کلمې د پخوانې لیک په اساس په ( ځ ) لیکل کیږي.
11. په کومو کلمو کې چې د (( څ ) ) په ځای د ((چه ) ) لهجه موجوده وي، هلته د (( څ ) ) لیکل په کار دي او په ((س ) ) باندې لیکل غلط دی. لکه: (( څوک، څانګه ) ) ولې چې بنګښ خلک ، ورته ( چوک ، چانګه ) وایي، نو (سوک او سانګه ) لیکل سم نه دی.
12. د لرې ماضي ضمیرونه په دې وروسته ډول لیکل په کار دی: (وم،وو ، وې، وئ، واست، ؤ ، وه، وې ).
13. د (( شول ) ) د مصدر فعلونه په دی ډول لیکل کیږي: (( وشوم، وشوو ، وشوې، وشوئ، وشو ، وشول، وشوه، وشوې ).
14. د ( زه، زما ، زمونږ، زموږ) ضمیرونه د (( هوز ) ) په ((ز ) ) سره لیکل کیږي. که په پښتو (( ځ ) ) ولیکل شی، نو دا مر له فعل (ځه) سره التباس پیدا کوی.
15. د ( لمبه، خمبه، چمبه، تمبل،سمبل ) کلمې په (( م ) ) لیکل په کار دی او په (ن) باندې (( لنبه،...... تر اخره ) ) لیکل سم نه دی.

## د یوې – کره پښتو لیکلارې اړ وند لیکدود (Orthography)

۱- یوه کره لیکنۍ پښتو ۳۲ غږونه(sounds) ، خو ابېخې (الفبې) له دېرشو نښو (توریو ) تېرې نه کوي. له ۷ خپلواکو (واوېلو ) څخه یوازې درې دا لیکنۍ نښې یا توري (وای) لري. د زور (فتحې) او زورکي لپاره (ه) یا (ء) او یا چرګۍ (هه) کارونګ د ژبپوهنیز قانون «توپیر» تر ډېر ځایه زیانمنوي او له لوستونکي لار لودن ورکوي. یوازې د «ی» د څلورګونو ډولونو له رامنځته کولو سره یو څه لیکدودي سمون راغلی دی چې له ښه مرغه پښتو را اکېډیمۍ هم هوکې کړې، که څه هم د اردو په پېښو(ے) او دغه راز(ء) بېخرته کارونې کوزنی لیکدود ډېر کړکېچن او کرغېړن کړی دی !

۲- څلورګونې«ی» ګانې له خپلو بېلګو سره:

- اوږده (ې) ، لکه:خدای دې ادې له دې ناوړې پېښې لرې لري.

- لنډه (ي) ، لکه:ښادي، خپلوي، وداني.

- نرمه (ی) ، لکه: نری سړی، ځای، خدای، وری، وړی.

- درنه (ۍ، ئ) ، لکه: نرۍ، کړۍ، ډوډۍ، څوکۍ...

- په کړ (فعل) کې، لکه: ډوډۍ وخورئ، ښه کوئ، بد مه کوئ.

۳- د واوېلي (غیرملفوظه) او کنسوننټي(ملفوظه) «ه» توپیرول په کار دي. په دې ډول:

په (دویم) کې د واوېل (فتحې) په توګه غورځي او په (نهم) کې د کنسوننټ(ملفوظه) په توګه پاتې کېږي. د (نهم) بنسټ(نه-)دی، مانا دا چې ړومبۍ(ه) کنسوننټ(حرف صحیح) دی او دویمه هغه یو واوېل (حرف علت) دی. (اووه - اووم، پېنځه - پېنځم، یو - یوم...) هم په همدې لړ کې راځي. نور واوېل پای یا خپلواکپای شمېرنومونه (-ي-) غواړي، لکه:

درې- درېیم، اویا- اویایم، اتیایم، نوي- نوي یم یا نوییم؛ «څویم» هم تر ورته دوی یا قاعدې لاندې راځي. کنسوننټ پای هغه خو په هر ډول اړونده پایله (- م) سیده په ځان پسې نښلوي، لکه:

څلورم، پنځم، شپږم، اتم، لسم... سلم، زرم، میلیونم... . پرکنسوننټي یا معدوله (و) پایته رسېدونکي شمېرې هم په دې لړ کې راځي، لکه:

یوم(یوسل ویوم)، دوه سوم... .

زور- پای او زورکي پای هم د دغو واوبلو تر غورځونې و روسته تر ورته قانون لاندې راځي.

۴- په (- ونکی) رغېدونکي کړنومونه همدا یو «و» غواړي، لکه:

لیکونکی، څېړونکی، ژباړونکی، ګنډونکی، خوړونکی، ښنونکی، تلونکی، ویونکی، وهونکی... ، خو که له فعلي مصدره (- ل) لرې شي او پاتې بنسټ یو «و» ولري، نو (ونکی) بیا (وونکی) کېږي، لکه:

کاروونکی، څېړوونکی، څرګندوونکی، اړوونکی، ټولوونکی... ، له (ښوول) او (پوول) څخه چې (-ل) لرې کړې، نو (وو) پاتې کېږي او په کارده، اړوند ستاینومونه یې (ښووونکی) او (پووونکی) ولیکل شي، خو د دود وینګ له مخې ترې یو «و» غورځي.

۵- غبرګژبیز توري (ټ، ډ، ړ، ڼ) چې غړونه یې له غړبو هیز پلوه پښتو ډېر پخوا له هندي (پراکرېټو) را پور کړي دي، په اروپایي ژبو کې هېڅ نه ویل کېږي. کوم انګرېزي ټکي چې په لره پښتو کې ویل کېږي او کارول کېږي، بیا هم هماغه هندي او بیا اردو- انګرېزي اغېز دی، لکه:

ډاکټر، ماسټر، تهئټر، سېنېټر، ډېموکرېټ، ډېماکراسي، ډېکټېټر، کلېنټن، رامسفېلډ، ټوني بلېر، اکسفورډ.

که څه هم بره خوا تر پارسي او بیا لاتین آرې پرانسي اغېز لاندې دغه غبرګژبیزوالی له وینګ او لیکنګ دواړو وتلی وو ، لکه: دوکتور، ماستر، تیاتر (ننداري)، سناتور، دېموکرات، دېموکراسي، دېکتاتور... ، خو زموږ د برنیو له کډوالۍ سره د لرنیو غبرګژبیزوالی پر ټوله پښتو واکمن شو او هغه هم زیاتره د انګرېزي پوروییونو په برخه کې، نه د نورو اروپایي ژبو(جرمني، پرانسي، ایټالیي، اسپانیي...) په برخه کې، لکه:

فیدل کاسترو- فیډل کاسټرو، شورایدر- شورایډر، هېلموت- هلموټ، دوګول- ډګل... مانا داچې دومره ښنده (زیاده روی) هېڅ په کار نه ده !

۶- جغرافیایي نومونه، لکه: اسیا، افریقا، اروپا، امریکا، استرالیا، انترکتیکا، کاناډا، برتانیا، ایټالیا، البانیا، انتونیا، استونیا، مکدونیا، کروشیا، کولمبیا، لیبیا، سوریا، چېچنیا، سومالیا، اېتوپیا، مالیزیا، اندونیزیا،... زموږ د لرغونو آریایي نومونو (آریانا، سوغدیانا، لودیانا، باکتریا، پښتونخوا...) په بېلګه په الف کره راځي، نه د عربي او اردو په پېښنو اسیه، افریقه... هرګوره، روسیه، تورکیه، فرانسه، اوتریش- اتریش یا اطریش، پولېنډ- پولند، انګلیستان- انګلېنډ یا انګلند... کې لومړۍ بڼې غوره او کره دي.

۷- پښتو ویاند ته په کار ده، د هر چا او هر ځای نوم د اړوندې ژبې له وینګ سره سم ولیکي او و وایي، لکه: پرانسي (مېشل)، روسی او جرمني (میخاییل)، انګرېزي (مایکل)، عربي- اسلامي (مېکا ئیل- مېکاییل)، یا د جرمني (یوزف)، انګرېزي (جوزف)، اسپانیي (خوسف)، د جرمني پخواني بهرني وزیر نوم (یوشکا) چې له آره د (یوزف) کوشیننوم (مصغرنوم) دی، هم همدا سې دړواخله چې زیاتره پېښوري او کوټه وال ویاندان یې «جوشکا» لیکي او وایي. روسي «څار» یا جرمني څویریښ.. هم بویه د پارسي یا نورو ژبو په پېښو (تزار، زوریخ یا زوریک..) ونه ویل شي او ونه لیکل شي.

۸- پښتو او آریاني یا نا عربي وییونه، ځاینومونه، ټبرنومونه او وګړنومونه باید تر وسې وسې له وینګ سره سم په پښتو تورو او لیکدود و لیکل شي، لکه:

توره باز (طوره باز)، تورخم (طورخم)، تورو (طورو)، توتو (طوطو)، توتي، توتا، توتاخېل (طوطاخېل)، تهران (طهران)، اناتولیا (اناطولیه)، توپان (طوفان)، پرښته (فرشته)، خپه (خفه)، اپلاتون (افلاطون)، الینګار (علینګار)، الیشنګ (علیشنګ)، لال و سرځنګل (لعل و سر جنګل)، اسلام کلا (اسلام قلعه)، کلای نو یا نوې کلا (قلعهٔ نو)، کندهار (قندهار)، کندوز یا کوندوز (قندز یا قندوز)، ساکزی (اسحاق زی)، الیزی (علیزی)، دوتر (دفتر)، ساپی (صافی)، اپریدی (آفریدی)، ګدون (جدون)....

۹- یوځای لیکل او جلا لیکل:

د ژبپوهنیز دوی (قاعدې) له مخې ټول ژبني توکي یا یوونونه (واحدونه) سره بېل بېل لیکل، په بله وینا، د اړوند لیک سېستم له شونتیا سره سم، تر وسې وسې جولیز یووالی له مانیز یووالی سره غاړه غړۍ کول په کار دي. که هغه ازاد وییکي وي، لکه: سربلونه، وستربلونه او اړیوییکي (په، پر، تر، د، له، سره، کې، پورې، ته.. چې، که، او، هم..)، که ساده وییونه وی، لکه: نومونه (کور، لوی، زه، ته، دی، دا، هغه، یو، دوه..)، یا کړونه (تلل، خوړل، ځي، خوري..) او یا ترښتي (ترکیبي) او بېلښتي (اشتقاقي) وییونه وي، لکه: کټمل، پوهنمل، پوهنتون، مرستون، خپلمنځي، خپلچاری، خپلخوښی، ځانساتی، تلپاتې، پښتونولي، پښتونخوا، ولسمشر یا هېوادمشر، بنسټپال، بېلتونپال، منځلاری، ترهګر، کتابتون، ټولپوښتنه، ټولوژنه، ځانوژنه، بلوژنه، لیکلړ، نوملیک، برخلیک، برېښلیک او برېښلکول، سمونلیک، برخوال، پانګوال، پانګواکي، ځمکوال، ځمکواکي، ځمکسمون، ځمکنی، ځمکلاندې، ژبپوهنه، ژبساپوهنه، ټولنپوهنه، لرغونپوهنه، وییپوهنه، ځمکپوهنه(او نورې پوهنې)، وییپانګه، وییزېرمه، سونتوکي، لرغونتوکي، مخنیوی، مخکتنه، کتنپلاوی، لاسلیک، لاسلیکول، لوستلیکی (درسي کتاب)، مخامخول، مخامخېدل، مخبېلګه، وړاندیز، وړاندوینه، وړاندبینه، ترینکوټ، لوبغالی، لوبغاړی، لوبډله، ژبڅېړنه، ژبښوونه، ژبښود، ژبپانګه، ژبتوکمیز، لیکلار، لیکلارښود،

په دې لړ کې له دوو وروستیو توکیو (نومونو او کړونو) سره د ړومبیو هغو (ازادو توکیو) یوځای لیکل کره نه دي، لکه:

لخوا ، لما ، پکور (کې ) ، پخپل (هېواد کې ) ، غزنیته (ځم )... ، نخورم، نکوم، نلرم، مخوره، مکوه... .

پخوا (قبل، قبلا ) ، پخپله (شخصا ) ځکه سم راځي چې خپلواک وییونه (قیدونه ) دي، ځانته - ځان ته او مخکې - (په ) مخ کې سره هم په ورته دلیل توپیر پېږي. «بلخوا» له «یوخوا» سره د اړیکوییکو په توگه همداسې یوځای دود موندلی دی.

یو لړ وییکي سره په خپلو منځو کې یا له خپلواکو توکیو سره ځکه یوځای لیکل کېږي چې د یو یوازېني چار یا مانا لپاره سره په غونډله (جمله ) کې تل پرله پرله پسې راځي، لکه: پکې (درآن ) ، همدا ، همدغه، همدی، همده ، همدې، هماغه، همداسې، هماغسې یا همغسې، همدارنگه، منځته راوړل، منځته راتگ، رامخته کول، لاسته راوړل، لاسته راوړنه، پایته رسول، لپاره، نشته، یا په (سترې مشي، خدای مکړه یا خدای دې نکړي ) غوندې گړنو او ځرگند نو کې وییکي (مه، نه ) له کړونو سره یوځای لیکل هم همداسې درواخله !

که نه، د ټولیز دوی یا قاعدې له مخې د غه دوه توکه له کړ سره نښلول سم نه دي او باید جلا ولیکل شي، لکه:

نه خورم، نه خورو ، نه کوم، نه کوو ، نه لرم، نه لرم، نه شم کولای، یا کولای نه شم، ونه شم کولای، را به نه شم، وابه نه وړم... . دلته کېدای شي، د لیک اسانتیا لپاره یوه نیمه بېدوییي یا استثناء ومنو ، لکه پاس په یاد شویو ، او یا په (وانخلم ، رانغلم ، رانغی ) غوندې دودو بېلگو کې.

له اوسنیو کمپیوټري اسانتیاوو او بیا د «یوې- کره پښتولیکلارې» دننه د کره ټولمنلې پښتو ابېڅې پر بنسټ رامنځته شویو کیبورډو سره په کارده ، په یو یو وت (space) سره د هرې کرښې یا غونډلې دننه په یو یو وت (space) سره د بېلابېلو لویو او کوشنیو توکو تر منځ لیکنی بېلوالی او خپلواکي ښه ترا سمباله کړو.

۱۰- په پښتو کې د نورو ژبو پوروییونه له ژبپوهنیز او نړیوال دود و دوی پر بنسټ تر کېدونه له پښتو وینگ او لړوډ بر مانیز اړونگ سره راخپلول په کار دي، لکه: گاډی (گاړی ) ، ماشوم (معصوم ) ، شمه (شمع ) ، تمه (طمع ) ، کیسه (قصه ) ، پوځ (فوج ) ، سبا (صباح ) ، میرات (میراث ) د تباه او برباد په مانا ، کرار (قرار ) ، سهار (سحر )... . پیل، توپان، اپت، تم، تپوس، پربښته، پراخ، خپه، خپگان، کمیس یا کمیز، مانا ، دین، شېر (شعر ) او یو لړ نور داسې وییونه د ډېرو آرپوهانو (اېټېمولوجېستانو ) د څېړنو له مخې نا عربي یا عربي شوي (معرب ) گڼل شوي او یا هم ټکرویي (تصادفي لغات ) زباد شوي دي.

۱۱- «ځ» د پښتو په څلورگونو گړدودي ډلوکې د (ښ، څ، ږ، ژ ) تر څنگه له شمال ختیزې هغې څخه تری تم شوې او له همدې کبله یې اړوند لیکوال په لیکدود کې زیاتره ټکني کېږي:

هغلته چې باید ځ ولیکل شي، ز لیکي او چېرې چې ز ته اړتیا وي، هلته ځ کاږي، د ځ پر ځای ز ، لکه په: غزېدل، خوزېدل، وزي، زلېدل، زیرک...کې؛ د ز پر ځای ځ، لکه په: ځوی، ځوی ځات یا ځوځات، ځېږېدل، ځانگو ، ځانگل یا ځنگل، ځنگول، ځنگېدل، یواځې، ځما ، ځمور، ځگېروی (زبېرگی هم ناکره دی ) ،

سلېمانځی، قتيل ځوی... که څه هم په يو لړ منځنيو ګړدودو ، لکه د خروټو ،اندړو او وردګو په هغو کې يې څه ناڅه وينګ هم شته، خو د لږه کيو الي له کبله له آرومعياره غورځي.

د اروانباد استاد الفت دا خبره ، که څه هم پر ژبپوهنه برابره نه ده چې:« ځ ثوک په خوله نه وايي، نو ليکل يې څه په کار دي !» ، خو دومره ښځايه ليکل يې هم په کار نه دي ، لکه څومره چې د ساپي پښتو مرکز «خوړيانې ورونو او ورېرونو» او قلمي همکارانو تازه رادود کړې ده !د دې لپاره د «يوې-کره پښتو ليکلارې» پر بنسټ د «ځ» کارونځايونه په لاندې ډول لنډېزمومي:

**-**د تلل، وتل، راوتل، ننوتل، پرېوتل، پورېوتل، کښېوتل، پرتل، پرانېستل يا پرانېتل... «ت» په وسمهال کې پر ځ اوړي، لکه په:

ځم، وځم، راوځم، ننوځم، پرېوځم، پورېوځم، کښېوځم، پرځم، پرانېځم... کې.

هرګوره ټول (-ت-) والا کړونه دا مهالي بدلون نه مومي، لکه: نتل، کتل. ختل پر خېژي، کوتل پر کوژي، نغوتل پر نغوژي... اوړي. دغه راز د «ځ» لرونکي ګړدود والا کندهاري ليکوال هم په پاسنيو کړونو کې يونيم په «ز» کارېږي، لکه: وزي، پرانيزي !

**-**له خپلوانو ژبو سره د همريښه وييونو د «ج» پر وړاندې پښتو «ځ» راځي، لکه په:

- ځمکه (هندي جماکه، پارسي زمين) ، ځنګل (هندي، پارسي او انګليسي جنګل) ، ګاځره (هندي ګاجر) ، ځاى (جا ، جاى) ، ځوان، ځلمی، ځک (جک) ، ځښت (زشت) ، ځنبل (جنباندن) ، ځولۍ (جولی) ، ځور (جور) ، ځلېدل، ځل، ځلا (جلا) ، ځلوبۍ (جلبي) ، ځوږ (جوش) ، ځيګر، ځنکدن، زنځير يا ځنځير.... دا هم هېرول په کار نه دي چې هره پښتو ځ د پارسي له ج سره يو مخيزه اېتېمولوجيکي مخامختيا نه لري، بلکې لږوډېر له نورو فونيمونو سره هم انډولتيا مومي، لکه په: نمونځ يا لمونځ - نماز، ځيرک - زيرک، ځمکه- زمين، روځ يا ورځ- روز... کې.د «د» پروړاندې، لکه په ګرديدن- ګرځېدل کې. ځواب له عربي جواب څخه کېدای شي، پښتو له پارسي لارې راخپل کړی اوسي.

- د تونروستاړي (مکاني لاحقې) ، په بله وينا ، د -ځاى، -ځی او يا -ځ په توګه، لکه په:

رغځی، دمه ځی، مېله ځاى، پخلنځی، دريځ، ختيځ، لويديځ، اوريځ، مينځ يا منځ، اخځ، ترخځ، چورليځ (محور) ، ګهيځ (د مهالروستاړي په توګه) ؛ رېبځ يا ربځ (جاروب، برس) هم د دغې لړۍ اړوند برېښي.

**-**په ګړدودي ځېلونو (وارينتونو) د «ز» او «ج» پر وړاندې «ځ» کره راځي، لکه په:

جاله- ځاله، زلمی- ځلمی، گونجې- گونځې یا غونځې، نا نزړه - نانځړه، جار- ځار، جرنده - ځرنده یا ژرنده، جندره- ځندره یا ژندره، زمکه - ځمکه (نه مزکه او مځکه )...کې. ختیز او لویدیز له آره د ځتیځ او لویدیځ د ستاینومونو (ختیځیزاو لویدیځیز ) لنډیزونه دي او په کار ده، لیکوال د دغه لیکدودي توپیر خیال وساتي !

۱۲- په ډېرو خپلو او پردیو وییونو کې تر چ ،ځ د کره لیکلارې او لیکدود ښکارندویې کوي، لکه په:

څښل (چښل ) څښاک، څټک، څګ (ګوړه )، څوکی، څپلی، څله (د ژمي یا واده )، څمڅه، څمڅی، څمڅوکی (کاشوغه )، خرڅ (خرچ، خرچه )، څڅی (ناوه )، څرمه (چرمه )، څرم، څرمن، څرمي، څرمني، (پس ) کوڅه، نڅوړ، نڅوړل، سمڅ یا څمڅ، څرمښکی، څمڅاره، څنی (نه سنی )، څوباړی (نه سوباړی )، څېره (نه چېره یا چهره او څهره )، څیرل، څیرې، څیرله (ریتاړه، پرزه )، اڅکزی

۱۳- « چې» د (چه، چي، څې ) او «کې» د (کښ، کښې، کښي، کي ) پرځای کره منل شوې دي.

۱۴- ځینې د (بعضې ) او ځنې د (څخه، ورڅخه، ترې ) په مانا توپیرول په کار دي.

**۱۵**- یو لړ وییونه او نومونې چې لرو پښتو لیکوالو زیاتره له انګرېزي او څه ناڅه (د اردو له لارې ) له پارسي او عربي، او برو له بېلابېلو ژبو په بېلابېلو بڼو راخپل کړي او راخپلوي، یوازینی هواری به یې دا وي چې پښتو نوې رغاونې (نیولوجېزمونه ) یې ځای ونیسي، لکه:

بیالوجي، بیولوجی، بیولوژي، بیولوګي (ژوند پوهنه )، لنګویستیکز، فلالوجي، لسانیات (ژبپوهنه )، سوسیالوجي، سوسیولوجي، سوسیولوژي، سوسیولوګي، اجتماعیات (ټولنپوهنه )، سوسیاټي، سوسیټي، جامعه، معاشره (ټولنه )، ډیماکراسي، ډېموکراسی، د موکراسي، جمهوریت (ولسواکي )، کلچر، کلتور، کولتور (فرهنګ، هڅوب )، موومنټ، تحریک، حرکت، جنبش( غورځنګ )، نشلېزم، نېشلېزم، ناسیونالېزم (ولسواله ).

۱۲- « ګ » چې له بده مرغه کوزه خوا دود لري او زموږ کمپیوتر پوه نورحمان لېوال هم د یوې بې سروبوله انګېرنې له مخې د خپل «ایشیا سافټ» پر پښتو ابېڅې را تپلی دی، نه یوازې له تخنیکي- اقتصادي، بلکې له ژبپوهنیز پلوه یو خورا ناسم کار دی. ځکه «کړی» یا د پېښوریو په نومونه «کوڼده» د غبرګژبیزو الي ښکارندویه ده او زموږ پخوانیو، اګاهانه یا نا ګاهانه د څلورګونو پښتو غبرګژبیزو غږونو (ټ، ډ، ړ، ڼ ) لپاره رامنځته کړې ده چې له وینګ سره یې رښتیا هم ژبه په خوله کې راکړی کېږي. دا ښه شوه چې تر څنګه یې د اجمل حمزه، اېمل پسرلي او نورو نوښتګرو د ښاغلي لېوال ټیکه والي نوره ننګولې او د پارسي او اردو په ګډون یې هماغه پخوانی«برنی» هغه (( ک ) ) پښتو پروګرام ته راننه ایستی دی او ورځ پر ورځ دودېدنه مومي. اېمل، هرګوره، بیا هم د کوزنیو په پېښو د زورکي (همزه ) ټینګ ساتلی دی !

۱۷- د کابل پښتو ټولنې د ناسمو لیکدودي پرېکړو یوه بېلګه دا وه چېد پارسي (بود- بودند، بودیم) پښتو انډولونه (و- وو- وو) وکښل شي او په دې توګه یې ما هم د ډېریو برنیو لیکوالو په لاروۍ د دودوالي او یووالي پر بنسټ په خپلو لوستلیکیو او بیا کره پښتو لیکلار او لیکدود کې دا درې لسیزې همدا سې خیال ساتلی وو. خو په دې وروستیو کې چې دغه کتابونه مې د بیا چاپ لپاره تر نوې کتنې، کرونې او بشپړونې لاندې ونیول، د نوې پښتو غږپوهنې له آر و معیار سره سم مې د یوګړي درېیم وګړي، یا په دودیزه - ملایي نومونه (مفرد غائب) «وو»، ډېرګړی یې «ول»، یا د(-ل) په غورځونه «وه» او ډېرګړی لومړی وګړی (جمع متکلم) پرهماغه زړه بڼه «وو»، یا د(ول) په آره ګرداني بڼه «ولو» کړ.

«ول» د پارسي«بودن» د انډول په توګه یو ژوندی کړ(فعل) دی او د نورو کړونو په څېر یې ګردانول په کار دي، لکه له تلل څخه:

تلو (لنډیز: ته)، تلل یا تله او تلو.... ړومبی اوږد - و( o ) او دویم (لنډ- و u ) وګړیزې پایلې (personal endings ) بلل کېږي چې په ملایي ژبپوهنه کې ورته هسې بېځایه «متصل ضمیرونه» وایي. د (بود ) انډول هم په دې(وو ) کره راځي چې ړومبی(و ) د کړبنسټ په توګه یو کنسوننټ یا معدوله و(w ) دی او دویم د یوګړي د پایلې په توګه یو واوېل (اوږد و o ) دی او بې له دې ړومبی کنسوننټي هغه هېڅ ویل کېدای نه شي. د(بودیم ) انډول(وو ) ورسره په وینګ او غږیزلیک توپیرېدای شي، ړومبی (و ) د کړ بنسټ په توګه کنسوننټ(w ) دی او دویم د ډېرګړي لومړي وګړي پایله یو واوېل (لنډ و u ) دی.

په هره توګه، زموږ په نیمګړي عربي آري لیک سېستم کې له دې نوي لیکدودي سمون سره سره بیا هم لوستونکی اړوځي، د وړاندې وروسته توکیو له مخې یې سم ولوستلای شي.

۱۸- شو (شد ) او شول (شدند ) په لړ کې چې د ویونکیو د ډېرې د آر پر بنسټ د (سو ) او (سول) پر وړاندې کره ارزول شوی دی، شوو د (شدیم ) یا(شدند ) د انډول په توګه له دوو (وو ) سره کښل، بېځایه دي، ځکه، لکه چې پاس وویل شول، هماغه ړومبنی لنډ- و وګړیزه پایله رغوي، دویم ته هېڅ اړتیا نشته. که په دې موخه پښتو ټولنې یا بل چا رادود کړی چې له یوګړي اوږد - و سره یې توپیر وشي، هم کوم آر نه شي ګڼل کېدای، که نه، په کار ده چې هرچېرې د لنډ - و لپاره غبرګ (وو ) ولیکل شي،لکه په (یو، ځو، رېبو... ) یا په نومونو (ټټو، لاټو، ډېپو، لاهو... ) کې.

۱۹- د لرې پښتونخوا لیکوال او ویاندان باید د(ږ- ګ )،(ښ- خ )،(څ- س )، (ژ- ج ) او (ځ- ز ) توپیر سره وکړي: نه سترګې (ستروږې) ولیکي، نه کېږي (کېګي) او داسې نور، که څه هم په ګړدودو کې یې د څلور واړو (ږ، ښ، ځ، څ ) وینګ له منځه تللی او له لیکوالو او ویاندویانو یې هم د اداینې تمه نه شي کېدای، خو د ((یوې-کره پښتو )) په پار یې باید تاریخي آروالی په لیک کې خوندي وساتي.

۲۰- که پردي او په تېره، عربي وييونه څوک له کره پښتو «شوي» وينګ او ليکدود سره سم ليکل غواړي، ورته اړينه ده چې يو مخيز يې را پښتو کړي، لکه: فوج د فوځ او فوز پرځای (پوځ)، فرشته د فرښته پرځای (پرښته)، قصه د قيصه پرځای (کيسه)، شمع د شمعه پرځای (شمه)... همدارنګه که (صا حب) اله ماله کارول کېږي، نو د (صيب) منځغړوپ وينګ او ليکدود څه په کار! څه مهال له مخه يوه ویاند (صحاب منصب) کښلی وو او ښا يي همداسې يې اورولی هم وي، نو ولې يې اسان او ساده اندول «افسر» و نه کارول شي چې د (تاج) په مانا هم آريا ني بنسټ لري او هم له انګرېزي (آفېسر) سره اړخ لګوي. بره خوا کلونه کلونه مخکې له سرتېري (عسکر) او کارمن (مامور) سره يوځای رادود کړ شوی وو، خو اوس ورسره د بي بي سي پارسي ځپلو پښتو وياندانو په پېښو دا نور دوه وييونه هم بيرته عربي اندولو ته اړول شوي دي.

۲۱- تر ټولو وروسته پر کښېنيو وياندانو بيا هم ټينګارپه کار دی چې د اردو مسخه او مېکسډ ژبې او ليکدود په پېښو پښتو ژبه او ليک په بېخرته (زورونو، زېرونو او همزه ګانو) انجرېنجر نه کاندې، بلکې پر ليکه (افقي) اوډون ډېر زور واچوي، په بله وينا، واوېلي توري همداسې ساده او بې خدوخاله (و، ا، ی، ې، ي، ۍ) وکارېږي.د (زېر) پرځای (ې) او د (پېښ) پرځای (و) وکاروي، که څه هم ځای ډېر ونيسي او کرښې زياتې وغځېږي. بره خوا، ان د پښتوټولنې په ډېرشمو لمريزو کلونو کې پر دغه آر ټينګار شوی وو، لکه په دې بېلګو کې:

ګومان، ګومارل، خوله، کوچنی (کوشنی)، غوټۍ، غونچه، موسکا، موسکی، پوخلا، پوخلاينه، خورما، توند، توکم، توخم، اوتمانخېل، کونړ، اورزګان يا ورزګان (ارزګان)، کوندوز يا کوندز، کولپ...، ګيله، څېرمه، ګيلاس، اورګان، رومان، کولتور، دوکتور، کلينيک، ټېکټ، ژورنالېست، ژورنالېزم... (پوره څرګنداوی <پښتو ليکلارښود)